ابتداء پشہ ۱۴ انتہا ۷ ۲۳

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ ۝
"بے شکه کټه اوکړه په عاجزئ مونځ کونکو"

# فضائلِ نماز

از
حضرت مولانا الحافظ الحاج المحدث محمد زکریا صاحب مدظلہ
شیخ الحدیث مدرسہ مظاہر العلوم سہارنپور

مترجم پښتو

حبیب الرحمٰن دار التصنیف رستم

مردان
(پرنٹر حاجی محمد حسین منظور عام پریس پشاور)

# فهرست مضامین

# فہرست مضامین

# خطبه او ضروری خبرے

ټولے ثنا ګانے او شکرونه خدائ دَ پاره دی. او درود او سلام دِ وی. په مهربان خوږ نبیؐ. دَ ده په اولاد، مرګرو او تابعدارو باندے. هغوی چه دی دَ دین نیغ حفاظت کونکی وو.

دَ دینه پس تحلوییست احادیث دَ مانځه په فضیلت کښ دی. چه دَ خپل ماما په حکم م راجمع کړی دی. خدائ دِ ده ته لوړے مرتبے ورکړی او ما ته او ده ته دِ دَ هغه کارونو توفیق راکړی. په کومو چه الله پاک رضا کیږی.

دَ دینه پس تاسو دَ دنیا حال وینئ. چه خلق دَ دین نه څومره بے پرواه دی. ترد ے چه دَ مونځ غوندے فرض نه چه دَ ایمان سره تړلے راغلے دے. او په قیامت کښ به دَ دے اول تپوس کیږی. دَ دینه هم غافل دی. او بل خوا دَ دین دَ پاره دَ تبلیغ سلسله هم نشته. په دے وجه ما دا خیال اوکړو. چه دَ خوږ نبیؐ احادیث تر خلقو اورسوم. سره دَ دے چه دَ دے په خوروُ نه کښی راته ډیر موانع دی. ځما دا یقین دے چه څوک خالی زړه لری. او دین مقابله نه کوی. په دے احادیثو به دوی ته فائده اورسی. ځکه چه دا دَ پاک رسول پاک الفاظ دی. بل دَ دوستانو هم دا بار بار وینا ده. دَ دے نه مخکښی م فضائل دَ تبلیغ لیکلے دے. نو هغه اول شه او فضائل نمازیځ دویم شه. او دا هر څه دَ خدائ په توفیق اوشو. په هغه توکل او هغه ته مرحیدکه دی.

دَ مانځه په باره کښ درے قسمه خلق دے. یو خو دَ مانځه اډو پروا نه کوی دویم چه مونځ کوی خو جه اوزګارشی. دریم هغه دی چه باقاعده په جمع مونځ کوی خو په بے پرواهئ او بے توجهئ سره. په دے وجه ما هم دَ دے کتاب درے بابه کړه. او په هر باب کښ م احادیث ذکر کړه. اکثره مانځه

تبلیغ کونکی عالمان وی. نو دوی د پاره م هر قسمه فوائد اولیکل. خدائ د زمونږ درے واړه قسمه خلق ما نځګذار کړی.

# اول باب

## د مانځه د اهمیت په بیان کښ دے

په دے باب کښ دوه فصلونه دی. په اول فصل کښ د مانځه د فضیلت بیان دے. او په دویم کښ د مانځه د نه کونکی عذاب دے.

## اول فصل د مانځه په فضیلت کښ

(۱) عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بُنِیَ الْاِسْلَامُ عَلٰی خَمْسٍ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ (متفق علیه)

د ابن عمرؓ نه روایت دے. چه د اسلام اباد ے په پنځو څیزونو باندے دے. اول د توحید کلمه. دویم مونځ دریم زکٰوة څلورم حج او پنځم د رمضان روژے. (دا حدیث بخاریؒ او مسلمؒ راوړیدے)

فائده:- خوږ نبیؐ اسلام یو اباد ے سنګاره کړو. او د دے پنځه ستنے سنګار کړے. د منځ ستن یے کلمه د توحید ده. او دا څلور یے د اړخونو ستنے دی که د منځ ستن نه وی نو اباد ے راغور زیږی. او چه دا وی نو د اړخ د ستنے په غورزیدو یو طرف قدرے کم وی. نو آباد ے اولاړ وی.

اوس د هر بنده په خپل حالت غور اوکړی. چه زمونږ د اسلام آباد ے په کوم حالت کښ دے. او د دے آبادی د ستنو د کلکوالی موځومره خیال ساتلے دے. د مسلمان خوشان دا دے چه د دے ټولو به خیال ساتی. او بیا په دے کښ ډیر ضروری او د ایمان سره متصل مونځ دے. لکه د عبد الله بن مسعود په سوال ده ته خوږ نبیؐ وے. چه د خدائ ډیر خوښ عمل مونځ دے. او بیا د مور پلار سره ښه سلوک دے. او بیا یے جهاد دے.

ابن مسعودؓ د انسؓ په روایت وائي ۔ چه مونځ په خپل وخت کښې ډیر غوره عبادت دے ۔ او ابن عمرؓ وائي چه په اول وخت کښې مونځ ډیر غوره دے دا نزدے نزدے روایات دي ۔

(۳) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ اَنَّ النَّبِیَّ صلعم خَرَجَ فِی الشِّتَاءِ وَالْوَرَقُ یَتَهَافَتُ فَاَخَذَ بِغُصْنَیْنِ مِنْ شَجَرَةٍ قَالَ فَجَعَلَ ذٰلِکَ الْوَرَقُ یَتَهَافَتُ فَقَالَ النَّبِیُّ یَا اَبَاذَرٍ قُلْتُ لَبَّیْکَ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَیُصَلِّی الصَّلٰوةَ یُرِیْدُ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوْبُهُ کَمَا تَهَافَتُ هٰذِهِ الْوَرَقُ عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ

(ترغیب)

د ابوذرؓ نه روایت دے چه خوږ نبیؐ په ژمی کښې اووت او پانړے دوړیدلے ۔ نو د یوے ونے څانګه ئے واخستله ۔ چه د دے پانړے دړیدے نو خوږ نبیؐ او فرمائیل اے ابوذره ما وے حاضر یم خوږ ه نبي ! خوږ نبيؐ اووے چه مسلمان چه د خدائی د پاره مونځ اوکړي نو د ده ګناهونه د ده نه داسے او دوړیږي لکه د دے ونے د څانګے پانړے چه دوړیږي ۔

(ترغیب)

فائده :- په سړه ژئی کښې ونے د پانړو نه بربنډے پاتے شي ۔ نو خوږ نبيؐ د اخلاص د مونځ په دے مثال ورکوی ۔ چه د بنده نه ګناهونه داسے اوځنړلے شي ۔ خو علماء وائي چه د دے نه مراد واړه ګناهونه دي ۔ د لویو ګناهونو د معافئ د پاره توبه ضروري ده ۔ نو د مانځه سره د استغفار اهتمام پکار دے چه دواړه ګناهونه او دوړیږي ۔ اګر که خدائی ته د لویو ګناهونو بے توبے معافی څه ګرانه نه ده ۔ هم دا حدیث دے خو په دے رنګ کښې بیانیږي چه د خوږ نبيؐ د دے حدیث ټول شکل خود ے شي ۔

ابوعثمانؓ وائي چه یوه ورځ زه د سلمانؓ سره د یوے ونے د لاندے ناست وم نو ده د دے ونے یوه وچه څانګه اوځنړله او د دے نه پانړے او دړیدے ۔ بیائے اووے چه تا څما نه تپوس اونه کړو ۔ چه ما دا کار ولے اوکړو ۔ ما وے ولے دې اوکړو؟ سلمانؓ وے ۔ چه یو ګذار د خوږ نبيؐ سره د یوے ونے د لاندے ناست وم نو خوږ نبيؐ د غسے یوه څانګه اوځنړله او د دینه پانړے او دوړیدے ۔ بیا ما نه خوږ نبيؐ اووے چه سلمانه ! تا څما نه تپوس اونه کړو ۔ چه ما داسے ولے اوکړه ۔

ماوے حضورؐ دا سے مو ولے اوکړه! خوږ نبیؐ اووے چه هرکله مسلمان ښه کامل اودس اوکړی. لو یه دے د ده ګناهو نه داسے اوړو یږی. لکه دا پاڼے چه اوړو یږیدے. اوبیائے اَقِمِ الصَّلٰوۃَ طَرَفَیِ النَّھَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّیْلِ اِنَّ الْحَسَنَاتِ یُذْھِبْنَ السَّیِّاٰتِ ذٰلِکَ ذِکْرٰی لِلذّٰکِرِیْنَ اولوستله. چه "مونځ د ورځے په دواړو اړخونو کښ اداکړه. او د شپے په څه حصه کښ بے شکه نیکی بدی لرے کوی. دا نصیحت دے د نصیحت منونکو د پاره".

فائده:- تاسو د سلمان د عشق ادا اولیده! عاشق د خپل محبوب هره ادا خوښوی. څه رنګ چه خوږ نبیؐ د سوال جواب په رنګ کښ د ګناهونو د معافئ ذکر سلمانؓ ته کړے ووُ. د غسے سلمان هم ابوعثمان ته دا ادا ښکاره کوی.

په احادیثو کښ د مطلق ګناه د معافئ ذکر دے. وړوکے اولوئی یکښ نه دے ذکر. د دے تحقیق د مولانا صاحب والی بزرګوار داسے کړیدے. چه د لوئی ګناه خو د مسلمان نه کیده د ده د شان مخالف دے. اوکه چرے لوئی ګناه ئے اوکړو. لو نو به توبه اوباسی. اوتوبه به هم تشه توبه نه وی. د ژړا انګولانه به ډکه وی. او د وړو کی ګناه خو پته نه لګی. ځکه د دے د معافئ ذریعه مونځ اوګرځولے شه. بله وجه ئے داخو لے ده. چه یو بنده په اخلاص مونځ اوکړی. او د سنتو او د مستحباتو خیال ساتی. اوتوبه اوباسی او په آخر التحیات کښ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ دعا اولولی. ښه کامل او پوره اودس کوی مسواک کوی. چه دا د ده مونځ اویادرجے زیاتوی. په مسواک کښ لس فائدے دی. د خُلے صفائی، د خدائے د رضا سبب، شیطان پرے قاریږی د ده سره خدائے محبت کوی. فرښتے ورسره مینه کوی. اُرږئی پرے کلکیږی. بلغم پرے راشلاشیږی. په خُلے کښ خوشبوئی پیدا کیږی. صفرا پرے لرے کیږی. نظر پرے تیزیږی. او دا د خوږ نبیؐ سنت دے. اولویه فائده ئے دا ده چه د مرګ په وخت په ورته کلمه شهادت نصیب شی او د اینمی په اویا فضائلو کښ د مرګ په وخت کښ د کلمے هیریده لری.

نقصان دے۔ دَ کامل اودس په وجه به ټول اندامونه بریښنا کوي۔
او په دے به خوږ نبیؐ دی اوپیژنی۔ نو دَ دے اعمالو په وجه به خود الله پاک
دَ ده گناهونه معاف کړی۔

(۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ
اللهِ صلعم یَقُوْلُ اَرَاَیْتُمْ لَوْ اَنَّ
نَهْرًا بِبَابِ اَحَدِكُمْ یَغْتَسِلُ فِیْهِ كُلَّ یَوْمٍ
خَمْسَ مَرَّاتٍ هَلْ یَبْقٰى مِنْ دَرَنِهٖ شَیْءٌ
قَالُوْا لَا یَبْقٰى مِنْ دَرَنِهٖ شَیْءٌ قَالَ فَذٰلِكَ
مَثَلُ الصَّلَوٰتِ الْخَمْسِ یَمْحُوْ اللهُ بِهِنَّ
الْخَطَایَا۔ مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ۔
وَعَنْ جَابِرٍ كَمَثَلِ نَهْرٍ جَارٍ غَمْرٍ عَلٰى
بَابِ اَحَدِكُمْ یَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ یَوْمٍ خَمْسَ
مَرَّاتٍ۔ (رواه مسلم)

دَ ابو هریرةؓ نه روایت دے۔ چه ما دَ خوږ نبیؐ نه
اوریدلی دی۔ چه خوږ نبیؐ یو ګل ارشاد اوفرمائیل
کوروئ! که دَ یو بنده په دروازه کښ بیدونکے
وله وي۔ او دے پکښی هره ورځ پنځه کرته لامبی
نو په ده به څه قدر دَ خیرے پاتے شی؟ دوی وئیل چه نه
خوږ نبیؐ او وے چه همدا دَ غسی مونځونه پنځه دی
خدائ په دوی باندے ګناهونه بیائی (بخاری او مسلم)
او دَ جابر په روایت کښ دی۔ چه بیدونکے روانه نهر
وی او په دے پنځه کرته لامبی۔
(روایت کړیدے دَ دے مسلم)

**فائده:**۔ په دَ ونکی نهر کښ په لامبلو خیری ځی۔ او چه بیا لاړ او په پاکے او
صفا وی۔ دَ غسے چه تش مونځ نه وی۔ بلکه سره دَ آدابو او مستحباتو اداکول شی
په دے گناهونه ځی۔ دا پنځه مونځونه دَ مونځونو دَ مینځ دَ وخت دَ گناهونو کفاره کوځی
او خوږ نبیؐ دا سے مثال بیانوی۔ چه یو بنده په یو کارخانه کښ خوارۍ مزدوری
کوی۔ نو په دیکښ خیرن شی۔ بیا چه دے کورته ځی نو په لارے کښ پنځه ولے وی
او دے په هرے ولے کښ لامبی۔ نو دَ غسے بنده دَ دنیا کاروبار کوی۔ او دا ګار گناهونه
ترے کیږی۔ په دے کښ خیرن کوځی دے چه پنځه مونځونه اوکړی۔ نو دا کویا
دده لامبل دی۔ په دے دَ ده دا دَ گناهونو خیرې لرے شی۔ په مانځه کښ دعا
کانے او پخنے غواړی۔ نو الله دے معاف کړی۔ خوږ نبیؐ دَ مونځ فائده او اثر
دَ خلقو په ذهن کښ کینوی۔ او دا قسم مثالونه بیانوی۔ چه هر څوک پرے پوهه
شی۔ خوږ نبیؐ دَ الله فراخ رحمت انعام او اکرام بیانوی۔ که څوک سره دَ دے
دَ الله دَ رحمت نه فائده نا خلی۔ نو دے دَ ځان نقصان کوی۔

دَ عدل تقاضا خو دا ده چه مونږ ته زمونږ دَ ګناهونو نافرمانو اوکو تا هو ضرور سزا را اکړی. خو الله ځومره مهربانه دے. چه مونږ ته یې دَ دے ګناهونو دَ لرے کیدو طریقه اوښودله. اوس که مونږ دَ دے نه فائده نا خلو. نو دا زمونږ بے وقوفی ده. دَ خدائی رحمت خو دَ بخښنے دَ پاره بهانے لټوی. ګورئ! که ما سخوتن ځا دا اراده اوکړه چه ځه به تهجد وته پاسم. او دے پا نه سید. او ده پاتے شه. نو دَ ده دَ دے ارادے په وجه ثواب اوشه. او خوب یې خوب اوشه. دَ خدائی دَ ور کړو دے طریقے ته فکر اوکړئ که سره دَ دے ځوک بیا هم دَ خدائی نزنه غواړی نو دے ډیر بے بخے او بے کاره بنده دے.

(۵) عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ فَزِعَ إِلَى الصَّلٰوةِ (احمد)

دَ حذیفه نه روایت دے. چه ځوک نبیؐ وُو چه ده ته به سخته واقعه پیښه شوه نو فوراً به یې مونځ ته ورد وکړو.

فائده:- مونځ دَ خدائی رحمت دے. ځکه دَ هر تکلیف په وخت کښ به یې دَ مونځ طرف ته منډه کوله. ځکه چه دَ مشکل اسانوالے دَ خدائی په رحمت راځی. او دغه دَ اصحابو هم دَ خوږ نبیؐ دَ تابعدارئ په وجه عادت وو. حضرت ابو درداءؓ وائی چه سیلئ به راغله نو تر هغے به خوږ نبیؐ دَ جمات نه نه وتو تر څو به چه سیلئ اولاړه نه وه. دغسے دَ نمر سیوری مئ په لګیدو به یې مونځونه کول او صهیب ... دے چه دَ نورو پیغمبرانو هم دا معمول وو. یوځل ابن عباسؓ ته دَ سفر په لارے کښ چا دَ خوئ دَ مړګ خبر ورکړو. دے دَ اوښ نه کوز شه. دوه رکعته مونځ یې اوکړو. او بیا یې اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ او وے. او بیا یې او وے. چه دا ما دَ قرآن دَ دے حکم تعمیل اوکړو. چه وَاسْتَعِیْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ. دغسے ابن عباس ته دَ قثم رور دَ مړګ خبر اورسیده. نو ده هم دَ غسے دَ لارے اړخ ته دوه رکعته مونځ اوکړو او په التحیات کښ یې او بد دعاګانے اوکړے. بیا په اوښ سور شه. او وَاسْتَعِیْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ یې تر آخره او وے. چه "په صبر او مانځه سره مدت او غواړئ" او دا مونځ ضرور ګران دے خو په عاجزی کونکو ګران نه دے. دغسے یو صحابی ته دَ خوږ نبیؐ دَ یوے بی بی دَ وفات خبر اورسیده. نو ده سجده مونځ شروع کړو. چا ورته او وے دا ولے؟

ده او وے چه دا د خوږ نبیؐ فرمان دے ـ چه یو واقعه او شی ـ نو مونځ کوی ـ نو د خوږ نبیؐ د بی بی د وفات نه لویه واقعه بله کومه کیدے شی ؟ د حضرت عباده د وفات وخت چه نزدے شه ـ نو حاضرینو خلقوته یې اووے چه په ما به ژړا نه کوئ ـ او چه زه مړ شم نو ښه کامل اودس اوکړئ ـ بیا جمات ته لاړشئ مونځ اوکړئ ـ او ځما د پاره بخښنه اوغواړئ ـ ځکه چه خدائی وایی وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ـ بیا ما په قبر کښ کیږدئ ـ د غسے یو ګذار د ام کلثومؓ خاوند عبد الرحمانؓ باندے د ناجوړتیا په حالت کښ بے هوشی غوندے راغله او خلقو داګمان اوکړو چه ګنے دے مړ شو ید ے ـ ام کلثوم په دے حالت کښ مانځه اودریده ـ دا چه د مانځه نه اوزګاره شوه نو عبد الرحمان هم په هوش کښ راغے ـ ده وے ولے ځما حالت د مړک غوندے وو څه ؟ دوی وے او ـ ده وے چه ځما سخه دوه فرښتے راغلے ـ او دوی ما ته وے مخکښ شه ـ د خدائی سخه د پیشی ده ـ دریمے فرښتے ورته اووے چه تاسو ځئ ـ دا هغه بنده دے چه د ده نیک بختی د مور په ګیډه کښ لیکلے شوے وه ـ او د ده نه به لا د ده اولاد نوره فائده اخلی ـ دے یو میاشت نور ژوندے وو بیا مړ شه ـ

حضرت نضر وے چه یو ګذار سخته تیاره شوه ـ زه په منډه د حضرت انسؓ سخه ورغلم ـ او تپوس م ترے اوکړو ـ چه دا قسم حالت چرے د خوږ نبیؐ په زمانه کښ راغلے وو ـ ده وے چه د دوی په زمانه کښ به چه هیله باد سیلئ راغله نو مونږ به په منډه جمات ته ورغلو چه چرته قیامت خو نه دے ـ

عبد الله بن سلام وے ـ چه هرکله د خوږ نبیؐ کره به څه تکلیف راغے ـ نو دوی به د کور خلقوته د مانځه حکم ورکړو ـ او دا آیت به یې وے ـ وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْئَلُكَ رِزْقًا ـ د کور خلقوته د مانځه حکم ورکړه او په خپله یې هم ښه په قاعده اوکړه ـ مونږ ستاسو نه روزی نه غواړو ـ روزی خو به زه درکوم ـ خوږ نبیؐ وایی چه تاسو ته هرکله څه دنیوی دینی ضرورت پیښی شی ـ د دے تعلق د مالک سره دی ـ که د چا سرې سره ؟ نو تاته پکاردی

چه سنه کامل اودس اوکړې. او دوه رکعته مونځ اوکړې. بیا د خدای ثنا صفت اووائې
بیا درود شریف اووایئ. او د دې نه روستو دا دعا اووایئ نو ضرور به د حاجت پوره شي
لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِیْمُ الْکَرِیْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ اَسْئَلُکَ
مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِکَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِکَ وَالْغَنِیْمَةَ مِنْ کُلِّ بِرٍّ وَّالسَّلَامَةَ مِنْ کُلِّ اِثْمٍ
لَاتَدَعْ لِیْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ وَلَا حَاجَةً هِیَ
لَکَ رِضًا اِلَّا قَضَیْتَهَا یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ ط

وهب بن منبه وائې چه د خدای نه حاجتونه د مانځه په ذریعه غوښتې شي. او
مخکښې به چه په چا سختي راغله نو په مانځه به شروع شو.

وائې چه په کوفه کښې یو مزدور وو. د ډیر اعتباری وو ډیر مالونه به یې اوړه.
یوه ورځ دې چرته په سفر تلو. په لاره کښې ورته یو سړی اووې. چه ته چرته ځې
او ده اووې چه فلانکی ښار ته. ده ورته اووې چه مانه کرایه واخله او په قچرې م
د ځان سره سور کړه. ده وې ډیره ښه ده. مخکښې چه تله نو دوه لارې راغلې
دې سړی اووې چه دا لار ښه ده مزدور وې چه دا خو ماته نه ده معلومه. خو
چه ته وایئ نو دغښې به څو. دوی تله تله مخکښې یو لوئی ځنګل راغې. او لار ختمه شوه.
او دغلته ډیر سړی پراته وو. دا سړې کوز شه او په دې مزدور پسې یې چاړه
راویسته چه دا مزدور مړ کړي. ده ورته اووې چه مانځه وړ ندې. دا هرڅه واخله
او ما پرېګده. ده وې اول به تا وژنم بیا به دا مال هال اخلم. ده ورته ډیر منت
او زاری اوکړه خو دا ظالم د چلې نه نه اوړیدو. ده ورته وې ښه ده یو دوه رکعته
مونځ کوم اجازت راکړه. ده وې ډیره ښه ده زر کوه دغښې به راته مخکښو هم وې
خو دوی ته مونځ فائده نه ده ورکړې. ده په مونځ شروع اوکړه الحمد یې اووې
او سورة ترې هیر شه. دغه وخت دې ظالم تقاضا کوله. چه زر کوه مونځ ختم
کړه. په دې کښې د ده په ژبه دا ایت راغې. اَمَّنْ یُّجِیْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ. ده
دا اووې او په ژړا وو. په دیکښې یو سور راښکاره شو. چه په زغره کښې پټ وو.
ده دا ظالم په نیزه اوواهه. او دې یې هلاک کړو. دې چه مړ شه نو د دغه
ځائې نه د اور لمبه پورته شوه. مزدور بې اختیاره په سجده پریوت. او د

خدائی شکریئے ادا کړو. او بیا یئے په دے غیبی سوړ پسے منډه کړه. چه دا ته څوک یئے؟
ده وے زه د اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ غلام یم. زه ته یه امن یئے. چه چرته ځے اخوا
ځه. دا حقیقت دے چه مونځ که د آخرت د کټے سبب دے نو د دنیا مصیبتونه هم
په دے لرے کیږی. او د زړه قلارے په مانځه راځی.

ابن سیرین به وے. چه که ما ته به دوه رکعت مونځ کولو او جنت ته تلو کښی
اختیار ورکړے شی. نو زه به اول مونځ اوکړم بیا به جنت ته لاړشم. ځکه چه په مانځه
کښ د الله رضا ده. او په جنت کښ ځما رضا ده.

خوږ نبیؐ وے چه ډیر خوش قسمته هغه بنده دے. چه لږ بال بچ لری ډیر
مونځ کوی. د ګذارے قدرے روزی لری او په دے صابره وی. ښه عبادت کوی ګمنام
وی زر مړ شی. نه یئے زیات میراث وی نه پرے زیاتے ژړا کانے وی.

خوږ نبیؐ وے چه ډیر ډیر مونځ په کور کښ کوئی کور کښ به مو خیریت ډیر
وی.

(۷) عَنْ اَبِیْ مُسْلِمٍ التَّغْلِبِیْ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰی اَبِیْ اُمَامَةَ وَهُوَ فِی الْمَسْجِدِ فَقُلْتُ یَا اَبَا اُمَامَةَ اِنَّ رَجُلًا حَدَّثَنِیْ عَنْكَ اَنَّكَ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم يَقُوْلُ مَنْ تَوَضَّاَ فَاَسْبَغَ الْوُضُوْءَ غَسَلَ يَدَيْهِ وَوَجْهَهٗ وَمَسَحَ عَلٰی رَاْسِهٖ وَاُذُنَيْهِ ثُمَّ قَامَ اِلٰی صَلٰوةٍ غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ فِیْ ذٰلِكَ الْيَوْمِ مَا مَشَتْ اِلَيْهِ رِجْلَاهُ وَقَبَضَتْ عَلَيْهِ يَدَاهُ وَسَمِعَتْ اِلَيْهِ اُذُنَاهُ وَنَظَرَتْ اِلَيْهِ عَيْنَاهُ وَحَدَّثَ بِهٖ نَفْسُهٗ مِنْ سُوْءٍ فَقَالَ وَاللّٰهِ سَمِعْتُهٗ مِنَ النَّبِیِّ صلعم مِرَارًا
(رواه احمد)

ابی مسلم تغلبی وائی چه زه ابی امامة ورغلم. او
دے په جمات کښ وو. ما ده ته اووے چه ما ته
یو سړی دا حدیث بیان کړو ستا نه. چه تا د
خوږ نبیؐ نه اورید لی دی. چه خوږ نبیؐ وے چه
سړه کامل پوره اودس اوکړی دواړه
لاسونه او مخ اووینځی. او په سر او غوږونو
مسح اوکړی. بیا مانځه ته اودریږی. نو خدای
د ده د ورځے د تلو ګناهونه او د لاسونو
ګناهونه او د غوږونو ګناهونه او د سترګو
د لیدو ګناهونه او کوم ګناهونه چه د ده
په زړه کښ پیدا شوی وی معاف کړی. ده وخیل
ما هم دغسے د خوږ نبیؐ نه دا حدیث ډیر
ګن ارکا اورید لے دے.

فائدہ :- دَ دے قسم په مختلفو الفاظو سره روايات راغلی دی۔ او چه دَ چا دَ زړه ستر ګے روښانه وی۔ هغوی دَ دے ګنا هونو لګه دَ خير و بهيد کاليدلی دی۔ لکه دَ امام اعظمؒ متعلق مشهوره ده۔ چه هغه په دغه ګناه ليدلکا۔ کوم به چه لرے کيده۔ خو په دے مغروره کيده نه دی پکار۔ چه څه او دس م اوکړو ګنا هونه م لاړه۔ ځکه چه ځمونږ دَ عبادت کوم حال دے۔ نو هغه هم زمونږ نه پټ نه دے۔ ګناهونه خو ګنا هونه دی۔ ګورے چه زمونږ دَ عيبونو نه ړک مونځ او دس چه به دَ قبليد و قابل هم وی کنه۔ مونږ هر څه دَ هغه نه دَ هغه دَ شان مطابق غواړو۔ څه به مونږ يو او څه به زمونږ عبادت وی۔ نو په دے کښ شک نشته چه دَ مونځ دا اثر دے خو ګورے چه زمونږ دا مونځ هغه مونځ دے کنه۔ بله دا چه که اړو خدائ معافی کونکے دے او هغه غفور رحيم دے نو دا کوم غيرت دے چه هر کله هغه معافی کوی۔ نو مونږ دِ ولے نافرمانی کوؤ۔ که يو پلار او واؤ چه زه به ځوئ ته دا غلطی معاف کړم نو ځوئ ته نه دی پکار چه هغه غلطی کوی۔ دا به دَ دے ځوئ نالائقی وی۔

(۷) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ کَانَ رَجُلَانِ مِنْ
بَنِیْ حَیٍّ مِنْ قُضَاعَةَ اَسْلَمَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ
فَقُتِلَ اَحَدُهُمَا وَاُخِّرَ الْاٰخَرُ
سَنَةً قَالَ طَلْحَةُ فَرَاَیْتُ الْمُؤَخَّرَ
مِنْهُمَا اُدْخِلَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الشَّهِیْدِ
فَتَعَجَّبْتُ لِذٰلِکَ فَاَصْبَحْتُ فَذَکَرْتُ
ذٰلِکَ لِلنَّبِیِّ صلعم فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صلعم اَلَیْسَ قَدْ صَامَ بَعْدَهٗ رَمَضَانَ
وَسِتَّةَ اٰلَافِ رَکْعَةٍ وَکَذَا رَکْعَةً
سُنَّةً عَنِ الصَّحَابَةِ یَقُوْلُوْنَ کَانَ
رَجُلَانِ اَخَوَانِ فِیْ عَهْدِ رَسُوْلِ
اللّٰهِ صلعم وَکَانَ اَحَدُهُمَا اَفْضَلُ

دَ ابو هريرهؓ نه روايت دے۔ ده وے چه دوه سړی دَ قضاعه قبيلے نه مسلمانان شو دَ خوږ نبیؐ سره نو يو شهيد شه او بل يو کال روستو مړ شه۔ طلحهؓ ما دَ وروستی جنت ته په خوب کښ داخليده مخکښ اوليده۔ زه په دے حيران شوم نو سحر م خوږ نبیؐ ته دا حال اووے۔ نو خوږ نبیؐ ما ته اووے چه ولے دَ ده نه پس ده دَ رمضان روژے نه دی لولی؟ او شپږ زره رکعته دَ کال مونځ يے اوکړو۔

او دَ ډيرو صحابو نه روايت دے چه دوه تنه دَ خوږ نبیؐ سره مسلمانان شو يو دَ بل نه ښه وو۔

مِنَ الْاٰخِرِ فَتُوُفِّيَ الَّذِيْ هُوَ اَفْضَلُهُمَا ثُمَّ عُمِّرَ الْاٰخَرُ بَعْدَهٗ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً۔

نو دا بنه اول مړ شه. بيا دا بل څلويښت شپې روستو.

په ابوداؤد کښې دا قسم قصه صرف د دانو ورځو په فرق بيان شوېده. او دا روستنی د مخکنی نه مخکښې جنت ته لاړه. په اصل کښې مونږ د مونځ قيمت نه پيژنو ځکه حيرانيګو.

کورئ! خوبه نبی ؐ په مونځ کښې د ستر کو يخ والے ويلي دے. د څلويښتو ورځو په فرق باندے روستے د مخکني نه مخکښې جنت ته د مونځونو په وجه ځي. الله دې مونږ د مونځ په قيمت پوهه کړي.

(۸) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلعم اَنَّهٗ قَالَ يُبْعَثُ مُنَادٍ عِنْدَ حَضْرَةِ كُلِّ صَلٰوةٍ فَيَقُوْلُ يَا بَنِيْ اٰدَمَ قُوْمُوْا فَاَطْفِئُوْا مَا اَوْقَدْتُمْ عَلٰى اَنْفُسِكُمْ. فَيَقُوْمُوْنَ فَيَتَطَهَّرُوْنَ وَيُصَلُّوْنَ الظُّهْرَ فَيُغْفَرُ لَهُمْ مَا بَيْنَهُمَا فَاِذَا حَضَرَةِ الْعَصْرُ فَمِثْلُ ذٰلِكَ فَاِذَا حَضَرَةِ الْعَتَمَةُ فَمِثْلُ ذٰلِكَ فَيَنَامُوْنَ فَمُدْلِجٌ فِيْ خَيْرٍ فَمُدْلِجٌ فِيْ شَرٍّ

ابن مسعودؓ د خوبه نبیؐ نه روايت کوي چه د هر مانځه په وخت کښې يو ملائکه اعلان کوي. چه اے د آدم ځويه! پاسه. کوم اور چه تا په ځان بل کړيدے دا مړ کړه. نو دوی پاسي ځان پاک کړي. او د ماسپښين مونځ اوکړي. نو دوی ته د سحر د ماسپښين د مينځ ګناه معاف شي. چه ماز يګر شي نو بيا دا سے اعلان وي د عښے ماښام او ماسخوتن هم وي. ماسخوتن خلق اوده شي نو څوک عبادت کوي څوک ګناهونه.

فائده:- په رواياتو کښې د مانځه په وجه د ګناهونو د معافئ ډير کثرة ذکر راغلے دے. په مانځه کښې استغفار دی. ځکه د ډيرو کی او د لوئی ګناه هر قسم ګناه معافی پرے کيږي. خو بره د ذړه د اخلاصه په ګناه ستومانه کيده ضرور دي.

سلمانؓ فارسي وائي. چه هر کله د ماسخوتن مونځ اوشي. نو بنی آدم درے قسمه شي. د يو د پاره خو شبه نعمت اوګرځي. د ګټے اونېکئ د پاره ښه موقعه بيا مومي. چه خلق په خوب اړم شي. نو دوی په عبادت شروع اوکړي. او ثوابونه ګټي. او دويم هغه خلق دے چه د ورځے يے ګناهونه نه ستوکولے. نو شپه ورله د ګناهونو د پاره موقعه ورکړي. او شپه ګناهونه کوي. نو دا شپه د ده د پاره د عذاب سبب شي.

اوخه خلق په قلاره سملی. نه گناه کوی او نه نیکی. نو شپه د دوی د یاره نه د عذاب سبب دے او نه د ثواب.

(۹) عَنْ اَبِیْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی اِنِّیْ اِفْتَرَضْتُ عَلٰی اُمَّتِكَ خَمْسَ صَلَوَاتٍ وَعَهِدْتُّ عِنْدِیْ عَهْدًا اَنَّهٗ مَنْ حَافَظَ عَلَیْهِنَّ لِوَقْتِهِنَّ اَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ وَمَنْ لَّمْ یُحَافِظْ عَلَیْهِنَّ فَلَا عَهْدَ لَهٗ عِنْدِیْ۔ (درمنثور)

ابو قتادة د خوږ نبی نه روایت کوی. چه دا ته خدای وے. چه ما ستا په امت پنځه مونځونه فرض کړیدی او د دوی د یاره م فیصله کړیده. چه څوک دا په خپل خپل وقت ادا کوی نو زه به ئے جنت ته داخل کړم. او چه څوک د دے حفاظت نه کوی نو ځما ور سره وعده نشته.

فائده:- په یو بل حدیث کښ دا سے وضاحت دے. چه څوک په دے مونځونو کښ لاپرواهی اوکو تاهی نه کوی سنه اودس اوکړی او په وخت مونځ اوکړی په عاجزئ ئے اوکړی نو د ده سره د جنت وعده ده. او چه څوک دا سے نه کوی نو د ده سره وعده نشته. که دے بخی او که دے عذابوی. تا سو د ما نځه برکت اولیده. په ما نځه د خدائ غوندے لوئ ذات د طرف نه د بخنے وعده کیږی. زمونږ سره که معمولی حاکم وعده اوکړی. او د یو کار ذمه واخلی. یا ضمانت اوکړی نو بنده به څومره خوشحاله شی. او د دے حاکم پیر احسان منی. او دلته په ما نځه چه خاص تکلیف یکښ نشته مالک الملک د دواړو جهانو بادشاه خدائ لوظ کوی نو که بیا هم مسلمان په دیکښ غفلت کوی نو دا ډیره کم بختی او نقصان او گڼړی. (استغفر الله)

(۱۰) عَنْ اَبِیْ سَلَّامٍ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ صلعم حَدَّثَهٗ قَالَ لَمَّا فَتَحْنَا خَیْبَرَ اَخْرَجُوْا غَنَائِمَهُمْ مِنَ الْمَتَاعِ وَالسَّبْیِ فَجَعَلَ النَّاسُ یَتَبَایَعُوْنَ غَنَائِمَهُمْ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَدْ رَبِحْتُ رِبْحًا مَا رَبِحَ الْیَوْمَ مِثْلَهٗ اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ الْوَادِیْ قَالَ وَیْحَكَ مَا رَبِحْتَ قَالَ مَا زِلْتُ اَبِیْعُ وَ اَبْتَاعُ حَتّٰی رَبِحْتُ ثَلٰثَمِائَةِ اُوْقِیَّةٍ فَقَالَ

ابن سلمان دے چه یو سړی د خوږ نبی د ملگرو نه ده ته قصه کوله. چه هر کله مونږ خیبر فتح کړو نو خلقو خیله برخه غنیمت راانېوله چه په دیکښ مختلف سامانونه وو. او قیدیان وو او د خرڅ او اغستل شروع شو. ضروریات ئے اغستل او زیاتی څیزونه ئے خرڅول په دیکښ یو صحابی راغے او خوږ نبی ته ئے اووے چه نن ما دومره ډیره گټه اوکړه خوږ نبی به حیرا نتیا

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أُنَبِّئُكَ بِخَيْرٍ رَجُلٍ رَجُلٍ قَالَ مَا هُوَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ۔

او وے چه خومره کښه د او کړه۔ د دے چه سامان هم اغستنه او څرڅوو درے سوه پیمانے هم او کټلے۔ خو رښتیا ورته او وے چه زه در ته ډیره کښه او ښایم؟ د ده وے او۔ خو رښتیا ورته او وے د فرضونه روستو دوه رکعته نفل"

فائده :- یوه پیمانه د څلویښتو روپو وی۔ او یوه روپئی زموږ څلور آنے وی۔ نو په دے حساب گویا درے زره روپئی او گټلے۔ خو رښتیا د کا نه دد ے نه ډیره کښه دوه رکعته نفل د فرضونه روستو بیانوی۔ ځکه چه حقیقی کښه خو هغه ده۔ چه د بنده سره ځی او نه ختمیږی۔ که خدائ زموږ دا ایمان نصیب کړی۔ چه دوه رکعته نفل د درے زرو روپو نه زیات د فائدے کار دے نو هله به زموږ ډوند زیات خوندناک شی۔ حقه خبره داده چه موږ لوئ دولت دے ځکه په دے د خوږ نبیؐ ستر کے یخیدے۔ او د وفات په وخت کښ د مانځه کولو وصیت کوی۔ او چه ژبه یئے نخته نو د غلامانو سره د ښه سلوک او د موږ حکم یئے کاوکا۔ (جامع صغیر)

یو کذار غازیان د بجد نه ډیر زر ډیر نه راغله او ډیر غنیمت یئے راوړه۔ خلقو په دے تعجب او کړو۔ خو رښتیا ورته او وے۔ چه د دینه په لږ وخت کښ د ډیر دولت کښه کو نکے جماعت در ښکاره کړم؟ دا د سحر د جمعے د مانځه نه روستو د نمر ختو پورے په خپل ځائے ناست چه شل منټه د نمر ختو تیر شی نو د اشراق دوه رکعته او کړی۔ دوی لویه او زر کټه کو نکی دی۔

شفیق بلخی صوفی وائی۔ موږ پنځه خیزونه په پنځه ځایونو کښ بیامونده۔ د ورځے برکت د ساخت په مانځه کښ او د قبر رڼرا د تهجد په مانځه کښ د منکر نکیر جواب د قرآن په لوستو او د پُل صراط تله په روژه او خیرات باندے۔ او د عرش سورے په ځانته والی کښ۔ (نزهة المجالس)

د مانځه په فضیلت کښ تبرکاً څلویښت احادیث لیکم۔ کنی دا سے ډیر احادیث دی۔

(۱) خوږ نبی ﷺ وائي خدائ دَ بنتولونه اول مونځ فرض کړو۔ او په قیامت کښې به اول دَ دے حساب وی۔ (۲) درے ګذاره خوږ نبی ﷺ اووے۔ چه دَ مانځه په باره کښې دَ خدائ نه او بیریږئ۔ (۳) دَ بنده او دَ شرک په مینځ کښې مونځ دیوال دے۔ (۴) دَ اسلام نخه مونځ دے۔ چه په سنتو او مستحباتو سره مونځ اوکړي نو دا مؤمن دے۔ (۵) خدائ دَ ایمان او دَ مونځ نه زیات فرض نه دے کړے۔ فرښتے څوک په سجده کښې او څوک په رکوع کښې دی۔ (۶) مونځ دَ دین ستن ده۔ (۷) په مونځ دَ شیطان مخ توریږی۔ (۸) مونځ دَ مؤمن رڼا ده۔ (۹) مونځ غوره جهاد دے۔ (۱۰) چه بنده مونځ کوی۔ نو دَ خدائ ورته توجه وی۔ کمی نه وی۔ (۱۱) چه دَ آسمان نه آفت راځی۔ نو دا دَ جمات جوړ ونکو نه اړخ نه ځی۔ (۱۲) په دوزخ کښې به اور دَ سجدے ځائ نه سوزوی۔ (۱۳) خدائ اور دَ سجدے په ځائ حرام کړیدے (۱۴) دَ بنتولونه زیات ښه عمل په وخت مونځ کول دی۔ (۱۵) خدائ ته دَ بنده دا حالت ډیر خوښ دے۔ چه په سجده تند ے کیږدی (۱۶) بنده دَ خدائ سره په سجده کښې نزدے کیږی۔ (۱۷) دَ جنت کونجیانے مونځ دے۔ (۱۸) په مونځ دَ جنت دروازے پرانستے شي او دَ بنده او دَ خدائ دَ مینځ پردے پورته شي۔ ترڅو چه په توخي نه وی لګیدلی۔ (۱۹) مانځګذار دَ خدائ دروازه ټکوی۔ او چه دروازه ټکوے نو آخو لرے کیږی۔ (۲۰) مونځ په دین کښې لکه سر په وجود کښې دے۔ (۲۱) مونځ دَ زړه رڼا ده۔ په مونځ زړه روښانه کیږی۔ (۲۲) څوک چه ښه اودس اوکړی او بیا په عاجزئ دوه څلور رکعته فرض یا نفل اوکړی او دَ الله نه دَ خپلو ګناهونو معافی او غواړی۔ نو خدائ به ورته معافی اوکړی۔ (۲۳) دَ زمکے په کومه ټکړه چه مونځ اوشی۔ نو دا ټکړه به په نورو ټکړو فخر کوی۔ (۲۴) چه بنده دوه رکعته مونځ اوکړی۔ او دَ خدائ نه سوال اوکړی۔ نو دَ ده دعا زر یا روستو ضرور قبلیږی (۲۵) چه بنده پټ مونځ اوکړی۔ په دے صرف الله او دَ هغه رسول عالم وی۔ نو دَ ده ته دَ اور نه دَ خلاصی پروانه ملاؤ شی۔ (۲۶) چه یو بنده فرض مونځ اوکړی۔ نو دَ ده یوه مقبوله دعا اوشی۔ (۲۷) چه ښه په فکر فکر په قلاره قلاره اودس او مونځ اوکړی۔ نو دَ ده دَ پاره جنت لازم شی۔ او دوزخ پرے حرام شی۔ (۲۸) ترڅو چه

بنده مونځ بنه په خیال اداکوي نو شیطان دده نه یریږي. او چه په مونځ کښ کوتاهي کوي نو شیطان بیرے زړه ورکیږي. او دده د دوهوکه کید وطمع لري. (۲۹) د هولو نه غوره عمل د اول وخت مونځ دے. (۳۰) مونځ د هر پرهیزګار قربانی ده. (۳۱) خدائ ته ډیر محبوب د اول وخت مونځ دے. (۳۲) سحر چه بنده مانځه ته ځي. نو دده په لاس کښ د ایمان جهنډه وي. او چه بازار ته ځي نو دده سره د شیطان جهنډه وي. (۳۳) د ماسپخین نه مخکښ د څلورو رکعتونو ثواب د تهجد و د څلورو رکعتونو برابر دے. (۳۴) دا څلور رکعته د تهجد و د څلورو رکعتونو برابر شمارلے شي. (۳۵) چه بنده په مانځه اودریږي. نو د خدائ رحمتونه ده ته متوجه شي (۳۶) د ټولو نه غوره مونځ د نیمے شپے مونځ دے. خو دا مونځ کونکي ډیر کم وي. (۳۷) خوږ نبي دے. چه مانه جبرائیل راغے. او دا سے یے اووے. چه خوږه نبیٔ! که هر څومره ژوندے یے. خو آخر مرګ دے. او که چا سره هر څومره محبت کوے آخر جدائي ده. او د هر عمل به خامخا بدله وي. د مؤمن شرافت په تهجد وکښ دے. او د مومن عزت د خلقو نه په بے پرواهۍ کښ دے. (۳۸) د آخرے شپے دوه رکعته مونځ د ټولے دنیا نه غوره دے. که تکلیف نه وے نو دا به م په امت فرض کړے وو. (۳۹) تهجد خامخا کوئ. دا د نیکانو طریقه ده. او خدائ ته د نزدو کید وسیله ده. تهجد بنده د ګناه نه منع کوي. او د خطایئ د معافئ ذریعه ده. د بنده په دے صحت بنه وي. (۴۰) خدائ وائي چه د آدم ځویه! ته د ورځے په اول کښ د څلورو رکعتونو نه مه عاجزه کیږه. ځه به ټوله ورځ ستا کارونه کوم.

دا څلویښت احادیث د مانځه د فضائلو د پاره کافي دي. مونځ ډیر لوئ دولت دے. ځکه په دے د خوږ نبي د سترګو یخوالے راته. او دا د خوږ نبي او د خدائ ډیر خوښ عمل دے.

یو صحابي حرته د جمات په خوا تیریده. چه خوږ نبي په مانځه ولاړ وو. ده ورپسے نیت اوتاړه. خوږ نبي بقره ختم کړه. او دیر ګذار کښے اللّٰهم لک الحمد اووے بیا یے آل عمران شروع کړه. خوږ نبي دا سورة هم ختم کړه. او رکوع یے اونکړه. او دغه برابر نئ کلمه یے اووے. او سورة مائده یے شروع کړه. نو

په دے یئے رکوع اوکړه - سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ بِیُ اووے - او ورسرکیئے نور څه هم وے - چه زه پرے نه پوهیدم - دغسے یئے سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی په سجده کښ سرکا دَنورو تکو وے - بیا یئے په دویم رکعت کښ سورۃ انعام شروع کړو - ما نور همت اونه کړے شه - او بیرته کورته راغلم - په اول رکعت کښ خوږ بنی پنځه پارے اووے - او دَ دوی تلاوت په قلاره قلاره او صحیح صحیح وو - نو تا سو دَ دے اول رکعت نه اندازه اولګوئ - چه دا به څومره اوږدوو - ځکه دَ خوږ بنی په ځیے مبارکے پړسید ے خو چه کوم کار دَ بنده خوښ وی - اوخوند ورکوی نو په دے ورته تکلیف پورته کول اسان وی -

دغسے ابو اسحٰق سبیعی مشهور محدث وو - دَ سلو کالو په عمر کښ وفات شوے وو - ده به وے چه ارمان دے بوډا شوم - دَ مونځ خوندم لاړه - ته کوره زه هیله په دوه رکعتونو کښ سورۃ بقره او آلِ عمران قد رے لولم - او دا سو دتو نه پاؤ کم شلور پارے دی - نن ورځے هم دَ خدائ داسے بندګان شته - چه دَ شپے اکثره حصه په مانځه لګوی - او دَ ورځے دَ دین تبلیغ تصنیف وغیره کوی بعض خلق په مانځه داسے مین دی - چه دَ دے بو سونه کوی - چه په جنت کښ به مونځ وی که نه؟ او که مونځ پکښ نه وی نو چه دا به څه خوشحالی وی - دا دنیا هم په دے قسم خلقو آباده ده - او هم دا قسم خلق دَ ژوند په خوند ونو پو هه دے - خدائ په خپل فضل او دَ دے قسم خلقو د قربانو په طفیل که په مونږ رحم اوکړی نو هیڅ بعیده نه ده -

دا فصل دَ ابن حجر په یوه قصه ختموم - یو کذار خوږ بنی اووے - چه ما ته درے څیزونه خوښ دی - خو شبوئ - ښځے - او ما دَ سترګو یخ دلے په مانځه کښ دے - ابو بکرؓ اووے چه ما درے څیزونه خوښ دی - یو ستاسو مخ مبارک ته کا ته - بل په تاسو خپل مال لګول - او دا چه ځما لور ستاسو په نکاح کښ ده - حضرت عمرؓ اووے چه ځما دا درے څیزونه خوښ دی - دَ نیکئ ویناء دَ بدئ نه منع او زړه جامه - حضرت عثمانؓ اووے - چه ځما په اوږدو خوراک خوړول، په بربنډو م اغوستول، او دَ قرآن لوستل - حضرت علیؓ اووے دَ میلمنو خدمت

دَ کومئ روژه او دَ دښمن په نوره وهل۔ خدائ دَ جبرائیلؑ نه پوښتنه اوکړه چه که ته په دنیاکښ وې نو ستا به څه خوښ وُو۔ ده وې کمراهانو ته لار ښودل۔ دَ غریب عبادت کونکی سره محبت۔ او دَ عیالدار غریب امداد۔ او دَ خدائ دَ بندیانو دادرې څیزونه خوښ دی۔ دَخدائ په لارکښ دَ مال او دَ جان لګخت، په ګناهو نوستو مانتیا او په دې ژړا، او په لوږه صبر۔

حافظ ابن قیم په زاد المعاد کښ لیکی۔ چه مونځ روزی راکاږی۔ دَ صحت محافظ دے۔ دَ ناجوړتیا دفع کونکے دے۔ دَ زړه طاقت ورکونکے دے۔ مخ روښانه کونکے دے۔ روح ته خوشحالی ورکونکے دے۔ نا راستیا لرے کونکے دے۔ سینه پراخستونکے دے۔ دَ روح خوراک دے۔ دَ الله دَ انعام حفاظت کونکے دے۔ دَ شیطان تختونکے دے۔ رحمان ته بنده نزدے کونکے دے۔ غرض دا چه دَ بدن او دَ روح پالونکے دے۔ دَ دنیا او آخرت دَ ضررونو لرے کونکے دے۔ او دَ دواړو جهانو دَ فائدو ښودونکے دے۔

# دویم فصل

په دے کښ دَ مونځ دَ پریښودو دَ سزاګانو ذکر دے۔ په دے باره کښ ډیر احادیث شته۔ خو زه یو څو احادیث دَ نمونے په رنګ لیکم۔ دَ خوږ نبیؐ خو یو حدیث کافی دے۔ چه عبرت ترے واخستے شی۔ خو دوی په مخلوط یقو ... دَ بیلما ذئ په عیبونو موږ پوهه کړو۔ چه دَ ده امتیان په مانځه کښ کوتاهی اونه کړی۔ څومره دَ افسوس خبره ده۔ چه څان ته دَ خوږ نبیؐ امتی وائی او په مانځه کښ کوتاهی کوی۔ دا ډیره بے غیرتی او بے حیائی ده۔ توبه توبه

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بَیْنَ الرَّجُلِ وَبَیْنَ الْکُفْرِ تَرْکُ الصَّلٰوةِ وَقَالَ بَیْنَ الرَّجُلِ وَبَیْنَ الشِّرْکِ وَالْکُفْرِ تَرْکُ الصَّلٰوةِ (ابوداؤد)

جابر دَ عبد الله څوئ وے چه خوږ نبیؐ وے چه دَ مونځ پریښودل دَ بنده دَ کفر سره یو ځائ کوی۔ او بل ځائے وئیلی دی چه مونځ پریښودل دَ بنده دَ کفر او شرک سره یو ځائ کوی۔

لَيْسَ بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ وَالْاِيْمَانِ اِلَّا تَرْكُ الصَّلٰوةِ۔

د ایمان او د کفر په مینځ کښ د مونځ پریښودو فرق دے۔

اَلْعَهْدُ الَّذِیْ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمُ الصَّلٰوةُ فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ۔

زموږ او د مسلمان لوظ مونځ دے چه مونځ پریږدی نو کافر شه۔

**فائده:-** په یو حدیث کښ راغلی دی. چه د ورځے په ورځ مونځ زر کوئ ځکه چه په مونځ پریښودو بنده کافر کیږی. مطلب نه د ورځے په ورځ د وخت پته او نه لیږی. او مونځ قضا شی. د مونځ قضا هم یو قسم د مونځ پریښودو ده دی خو مره سخته خبره ده. خوږ نبی په مونځ پریښودو نکی د کفر حکم لگوی. اگرچه بعض عالمانو دلته د مونځ نه د انکار قید لگولے دے. خو د دے ډیر تکرار دے. ډیر اصحاب د مونځ په بے عذره پریښودونکی د کفر حکم لگوی. د امام احمد وغیره هم دا مذهب دے (لتوبه)

(۲) عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ قَالَ اَوْصَانِیْ خَلِيْلِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم بِسَبْعِ خِصَالٍ فَقَالَ لَا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَاِنْ قُطِّعْتُمْ اَوْ حُرِّقْتُمْ اَوْ صُلِّبْتُمْ وَلَا تَتْرُكُوا الصَّلٰوةَ مُتَعَمِّدِيْنَ فَمَنْ تَرَكَهَا مُتَعَمِّدًا فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الْمِلَّةِ وَلَا تَرْكَبُوا الْمَعْصِيَةَ فَاِنَّهَا سَخَطُ اللّٰهِ وَلَا تَشْرَبُوا الْخَمْرَ فَاِنَّهَا رَاْسُ الْخَطَايَا كُلِّهَا (ابوداؤد ابن ماجه)

عباده د صامت ځوئے روایت کوی. چه ما ته خپل دوست خوږ نبی د اوو خبرو وصیت کړیدے. چه د خدائ سره شریک مه جوړه وئ. اگر که ټکړے ټکړے شوئ یا او سوزولے شئ. یا په سولئ شئ. او د قصد مونځ مه پریږدئ چا چه د قصد مونځ پریښود هغه د اسلام نه اووت د خدائ نافرمانی مه کوئ په د خدائ قاریږی. او شراب مه څکئ ځکه چه دا د خطاګانو سر دے.

(۳) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ اَوْصَانِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم بِعَشْرِ كَلِمَاتٍ قَالَ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَاِنْ قُتِلْتَ وَحُرِّقْتَ وَلَا تَعُقَّنَّ وَالِدَيْكَ وَاِنْ اَمَرَاكَ اَنْ تَخْرُجَ مِنْ اَهْلِكَ وَمَالِكَ وَلَا تَتْرُكَنَّ صَلٰوةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا

د معاذ د جبل د ځوئ نه روایت دے. ده وے چه ما ته خوږ نبی د لسو خبرو وصیت کړے دے. چه د خدائ سره شریک مه جوړه ده اگر که او وژلے شے. او سوزولے شے. او د مور پلار نافرمانی مه کوه. اگر که د د بال چه

فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّتُهُ اللهِ وَلَا تَشْرَبَنَّ خَمْرًا فَإِنَّهُ رَأْسُ كُلِّ فَاحِشَةٍ وَإِيَّاكَ وَالْمَعْصِيَةَ فَإِنَّ بِالْمَعْصِيَةِ حَلَّ سَخَطُ اللهِ وَإِيَّاكَ وَالْفِرَارَ مِنَ الزَّحْفِ وَإِنْ هَلَكَ النَّاسُ وَإِنْ أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ فَاثْبُتْ وَأَنْفِقْ عَلَىٰ أَهْلِكَ مِنْ طَوْلِكَ وَلَا تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ أَدَبًا وَأَخِفْهُمْ فِي اللهِ (رواه احمد)

اول نه اوباسی. او فرض مونځ دقصده مه پریږده ځکه چه چا د قصده مونځ پریښودلو د دے د خدائ د ذمه واری نه اووت. او شراب مه ځکه چه دا د هرے بے حیائ سر دے. او د هر ګناه نه ځان بچ ساته ځکه چه په دے الله قاریږی. او په غزا کښ تیختنه مه کوه اګرکه تول ملګری د مړه شی. او که عام مرګ راشی نو مه تخته. او په خپل بال بچ سره خرچ کوه او د ادب د پاره د دوی نه امسا مه لرے کوه. دوی د خدائ نه یره وه.

**فائده:** دلی کی د نه پورته کولو مطلب دا دے. چه په دوی هر وخت فکر کوه آزادی ته ئے مه پریږده چه بے ادبه نه شی. او کله کله ئے د شریعت د حکم په برابر وهل پکار دی.

نن ورځ اولاد د محبت په وجه په ادب کولے نه شی. نو بیا ئے عادتونه داسے پاسته شی چه هغه نه لرے کیږی. داسے مینه مینه نه ده دا د ده سره دښمنی ده. د ده وهل د محبت نه خلاف نه دی. که په بچی ننګٹی دی نو دا د نشتر د درد په وجه پریښودو ده عقل نه دے. خوږ نبی فرمائ. چه تر اوو کالو ورته حکم کوه. او چه د لسو کالو شی او مونځ نه کوی. نو بیا ئے وهه. نو د مونځ او د سبه عادتونو په اولاد کښ د مور پلار فرض دی.

لقمان حکیم د اولاد وهل د فصل او به خور منی. خوږ نبی وائ چه د اولاد ادب د یوے پیمانے خیرات نه ډیر ثواب دے. صاع پیمانه درے نیم سیره دی. خوږ نبی وائ چه خدائ د په هغه مور پلار رحم اوکړی. څوک چه د اولاد د ادب د پاره کروره زورنده ساتی. حدیث دے چه اولاد ته د دے نه بنه بخنه نشته چه نه ورله ښه تعلیم ورکړے.

(۷) عَنْ نَوْفَلَ بْنِ مُعَاوِيَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صلعم قَالَ
نوفل د معاویه ځوئ وے چه خوږ نبی د

مَنْ فَاتَتْهُ صَلٰوةٌ فَكَاَنَّمَا وُتِرَ اَهْلَهٗ وَ مَالَهٗ ۔ (ابوداؤد ۔ نسائی)

چه دچا نه یو مونځ پاتے شی . دا داسے اوګڼړه لکه چه دده کور خلق او مال ټول او تختولے شه ۔

فائده :- خوږ نبیؐ دا ښکاره کوی . چه خلق خو مونځ د بال بچ د خدمت یا تجارات په وجه پریږدی . خو دے ئې خبره وی . چه د یو مونځ پریښودو داسے او ګڼړه لکه چه ستا دا محبوب بال بچ او مال دولت هلاک شه . که نه د دوی په هلاکت خفه کیږے نو په مونځ پریښودو هم خفه شه . که یو کس ته څوک معتبر او وائی . چه په دے لارے د شپے تلونکی لوټ کیږی . او وژلے شی . نو په دے لارے به کله څوک لاړ شی . شپه خو شپه ده د ورځے به هم لاړ نه شی . ولے د خوږ نبیؐ په څلے منونکی یار بار یو هسے کولے شی . چه د مونځ پریښو کښ هلاکت دے او بیر بیلماځی اړو دا قسم خلق پروا نه لری . د دوی زړونه ډکټو نه ملک دی . (توبه)

(۵) عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَمَعَ بَيْنَ صَلٰوتَيْنِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَقَدْ اَتٰى بَابًا مِنْ اَبْوَابِ الْكَبَائِرِ ۔ (رواه الحاکم)

د ابن عباسؓ نه روایت دے . چه خوږ نبیؐ وے . چه څوک دوه مونځ بے عذره په یو وخت کوی . نو دے د لویو ګناهونو په دروازه اوورسیده . (حاکم روایت کړیدے)

فائده :- حضرت علیؓ وائی چه په درے څیزونو کښ روستو والے مه کوئ . یو چه د مانځه وخت راشی . بل چه جنازه تیاره شی . بل چه د خولے جینئ د نکاح طلب اوشی .

ډیر په رنګ او دعوے دینداره خلق دے . چه ځان ډیر مانځګذاره ګنړی . دوی په معمولی بهانه ډیر مونځونه د سفر ، یا دکان یا د ملازمت په وجه کور په جمع په یو وخت کښ ستهل کوی . دا لوئ ګناه دے چه بے عذره په خپل وخت مونځ نه کوی . د بے وخته مونځ ګناه په د بیلماځه نه کم وی خو ګناه ضرور دے .

(۶) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صلعم عبدالله بن عمرؓ د خوږ نبیؐ نه روایت کوی .

أَنَّهُ ذَكَرَ الصَّلٰوةَ يَوْمًا فَقَالَ مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَتْ لَهُ نُوْرًا وَّبُرْهَانًا وَّنَجَاةً يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَنْ لَّمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ يَكُنْ لَّهُ نُوْرٌ وَّلَا بُرْهَانٌ وَّلَا نَجَاةٌ وَّكَانَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَعَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ أَخْرَجَهُ أَحْمَدُ وَزَادَ فِيْ رِوَايَتِهٖ قَارُوْنَ

چه یوه ورځ خوږ نبي ؐ د مونځ ذکر کاوو. نو دوی اوفرمائیل. چه څوک د مونځ حفاظت کوی. نو دے به د ده د پاره رڼړا، دلیل، او خلاصے وی. د قیامت په ورځ. او څوک چه د دے حفاظت نه کوی. نو د ده د پاره به رڼړا دلیل او خلاصے نه وی. او دے به د قیامت په ورځ د فرعون هامان ابی بن خلف سره وی

او په بل روایت کښ د فرعون سره قارون هم ذکر دے.

فائده:- فرعون خو هر څوک پیژنی چه دے د لوئے درجے کافر وو. تر دے چه ده د خدائی دعوه کړے وه. او هامان د ده وزیر وو. او اُبَي بن خَلَف په مکه کښ د اسلام سخت مخالف مشرک وو. ده به د هجرت نه مخکښ خوږ نبي ؐ ته وے. چه اس مے ښه ساتلے دے په ده به سوریږم. او تا به وژنم. (نعوذ بالله) خوږ نبي ؐ ورته یو ګذار اووے چه زه به تا وژنم. د اُحد په جنګ کښ ده د خوږ نبي ؐ ډیر تلاش کوو. ده وے که خوږ نبي ؐ نن بچ شه. نو ځما خیر نشته. ځکه ده په حمله کښ خوږ نبي ؐ ته نزدے والے اوکړو. اصحابو د ده د وژل غوختل خو خوږ نبي ؐ ورته اووے چه ما ته یے پریږدئ. چه دے را نزدے شه نو خوږ نبي ؐ د یو صحابی نه نیزه واغسته. او په سټ یے پرے ګذار اوکړو. څه لږ غوندے اوګریده خو سره د دے د اس نه را اوغورځیده. او په منډه منډه خپل فوځ ته ورغے. او قسمونه یے خوړه. چه زه محمد ؐ اووژلم. کافرانو ورته وے چه چپ کړه معمولی ګرید لے یے. خو ده به وے چپ کړئ ما ته محمد ؐ په مکه کښ وئیلی وو. چه زه به تا وژنم. خدائیګو ځما په ده دومره یقین دے. چه زه به د ده په تو کانړو تو هم مړ شم. او وائی چه د ده آوازه د غوئی پشان شوے وو. ابو سفیان ورته اووے. چه ته شرمیږے نه. دے لږ ګریدلو ته چغے وهے. ده ورته اووے ته خبر یے. دا د چا ګذار دے؟. دا خو د محمد ؐ ګذار دے. ما ته دومره تکلیف دے. چه ځما د په لات او عزی بتانو قسم وی. که دا د ده په

ټول حجاز تقسیم شو نو هغوی به ترې هم چغې اووهې. محمد ما ته په مکه کښې ذلیلی وو.
چه څه به تا وژنم. زه په هغه وخت یوئ شوم. چه زه به د ده د لاسه مړم. زه
د ده نه خلاصیدے نه شم. نو دے مکے ته د رسیدو نه یوه ورځ مخکښې مړ شه.
زمونږ د مسلمانانو د پاره دا د غیرت او عبرت مقام دے. چه یو کافر مشرک
خو د خوږ نبی په وینا دومره یقین لري. چه د ده د لاسه په خپل مرګ کښې هیڅ
شک نه کوی ځکه چه دا د محمد وینا ده. او مونږ خوږ نبی پیغمبر او رښتینے منو.
او د ده په فرمانونو یقین کوو. او د ده سره د محبت دعوے کوو. او د ده په امت
والی فخر کوو. ولے دا د کتو خبره ده. چه مونږ د ده په وینا څومره عمل کوو. او په
کوم کښې چه دوی عذاب ویلے دے. د دے نه څومره پرهیز کوو. دے ته به هر مسلمان
په خپل ګریوان کښې اوګوري. زه به ستا او ته به ځما په باره کښې څه خبر لرے.

د قارون د فرعون سره ذکر ابن حجر په کتاب الزواجر کښې کړے دے.

او د دے وجه دا ده. چه قارون د مال په وجه په زمکه کښې ننوتے شوے وو. او مونږ
هم اکثر د مال ګټلو په خاطر بیلماځې کوو یا سستی کوو. د غسے فرعون د حکومت
په وجه او هامان د وزارت په وجه او ابی بن خلف د تجارت په وجه ناکاره وو.
نو څوک بیلماځې هم په دے وجوهات راځي. ځکه د دوی حشر به د دوی سره وی.
خو دومره فرق به وي. چه دا کافران به همیشه عذابیږی. او بیلماځه به پس د څه
مودے عذاب نه خلاص شی. ولے نو خلاصیدو د غه موده هم څه لویے نوے
نه دی. څو زره کاله به وی.

(۷) وَقَالَ بَعْضُهُمْ وَرَدَ فِي الْحَدِيْثِ اَنَّ مَنْ
حَافَظَ عَلَى الصَّلٰوةِ اَكْرَمَهُ اللّٰهُ بِخَمْسِ خِصَالٍ
يُرْفَعُ عَنْهُ ضِيْقُ الْعَيْشِ وَعَذَابُ الْقَبْرِ
وَيُعْطِيْهِ اللّٰهُ كِتَابَهُ بِيَمِيْنِهِ وَيَمُرُّ عَلَى الصِّرَاطِ
كَالْبَرْقِ وَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ وَمَنْ
تَهَاوَنَ عَنِ الصَّلٰوةِ عَاقَبَهُ اللّٰهُ بِخَمْسَ
عَشْرَةَ عُقُوْبَةً خَمْسَةٌ فِي الدُّنْيَا وَثَلٰثَةٌ"

په یو حدیث کښې راغلی دی. چه څوک د
مونځ سره غور فکر کوی. نو خدائ به د ده
پنځه عزتونه اوکړی. یو به د ده نه د روزۍ
تنګی لرے کړی. او د ده نه به د قبر عذاب
لرے شی. د ده ته به په ښی لاس کښې
عملنامه ورکړے شی. او په پل صراط به
لکه د بجلۍ تیر شی. او بې حسابه جنتي شي

عِنْدَ الْمَوْتِ وَثَلٰثٌ فِيْ قَبْرِهٖ وَثَلٰثٌ
عِنْدَ خُرُوْجِهٖ مِنَ الْقَبْرِ فَاَمَّا
اللَّوَاتِيْ فِي الدُّنْيَا فَالْاُوْلٰى تُنْزَعُ
الْبَرَكَةُ مِنْ عُمْرِهٖ وَالثَّانِيَةُ تُمْحٰى
اَسْمَاءُ الصَّالِحِيْنَ مِنْ وَجْهِهٖ وَ
الثَّالِثَةُ كُلُّ عَمَلٍ يَعْمَلُهٗ لَا يَاْجُرُهُ
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَالرَّابِعَةُ لَا يُرْفَعُ لَهٗ
دُعَاءٌ اِلَى السَّمَاءِ وَالْخَامِسَةُ لَيْسَ لَهٗ
حَقًّا فِيْ دُعَاءِ الصَّالِحِيْنَ وَاَمَّا الَّتِيْ تُصِيْبُهٗ
عِنْدَ الْمَوْتِ فَاِنَّهٗ يَمُوْتُ ذَلِيْلًا وَالثَّانِيَةُ
يَمُوْتُ جُوْعًا وَالثَّالِثَةُ يَمُوْتُ عَطْشَانًا
وَلَوْ سُقِيَ بِحَارَ الدُّنْيَا مَا رُوِيَ مِنْ
عَطْشِهٖ وَاَمَّا الَّتِيْ تُصِيْبُهٗ فِيْ قَبْرِهٖ
فَالْاُوْلٰى يُضَيِّقُ عَلَيْهِ الْقَبْرُ حَتّٰى
تَخْتَلِفَ اَضْلَاعُهٗ وَالثَّانِيَةُ يُوْقَدُ
عَلَيْهِ الْقَبْرُ نَارًا فَيَتَقَلَّبُ عَلَى الْجَمْرِ
لَيْلًا وَّنَهَارًا وَالثَّالِثَةُ يُسَلَّطُ
عَلَيْهِ فِيْ قَبْرِهٖ ثُعْبَانٌ اِسْمُهُ الشُّجَاعُ
الْاَقْرَعُ عَيْنَاهُ مِنْ نَارٍ وَّاَظْفَارُهٗ
مِنْ حَدِيْدٍ طُوْلُ كُلِّ ظُفْرٍ مَسِيْرَةُ
يَوْمٍ يُكَلِّمُ الْمَيِّتَ فَيَقُوْلُ اَنَا
الشُّجَاعُ الْاَقْرَعُ وَصَوْتُهٗ مِثْلُ
الرَّعْدِ الْعَاصِفِ يَقُوْلُ اَمَرَنِيْ رَبِّيْ
اَنْ اَضْرِبَكَ عَلٰى تَضْيِيْعِ صَلٰوةِ الصُّبْحِ
اِلٰى بَعْدِ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَاَضْرِبَكَ عَلٰى

او څوک چه په مانځه کښې سستي کوي. نو ده ته
به په پنځلس طریقو عذاب ورکړے شي. پنځه
په دنیا کښې او درے د مرګ په وخت کښې او
درے په قبر کښې او درے د قبر نه د وتو په
وخت کښې. د دنیا پنځه دادي. د ده په ژوند
کښې به برکت نه وي. د ده د مخ نه به د صالحینت
نښه الاړه شي. د ده د نیکو ثواب به لوی
د ده دعا به نه قبلیږي. د نیکانو په دعاګانو
کښې به د ده برخه نه وي. او د مرګ عذاب
دادے. په ذلت به مړ شي. او بږے به
مړ شي. په تنده کښې به مړ شي. که
د دنیا سمندونه او څښکي تنده به یې نه
نه مړه کیږي. د قبر درے عذابونه
دادي. چه په ده به قبر تنګ شي. دومره
چه د ده پښتۍ به په یو بل کښې داخلے کړي.
په قبر کښې به یې اور بلیږي. په ده به په
قبر کښې داسے مار مسلط شي. چه د ده
سترګے به د اور وي. او نوکونه به یې
د اوسپنے وي. او دومره به اوږده
وي چه د ورځے په سفر به یې تر
آخره رسے. د ده آواز به د بجلۍ
د برېښنا پشان وي. او دے به
وائي چه زه خدائ په تا مقرر کړے یم.
چه تا د سحر د مونځ د پریښودو په وجه
تر نمر ختو وهم. او د ماسپښین

تَضْيِيعُ صَلٰوةِ الظُّهْرِ اِلَى الْعَصْرِ وَ اَخَّرْتُكَ عَلٰى تَضْيِيعِ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلَى الْمَغْرِبِ وَ اَخَّرْتُكَ عَلٰى تَضْيِيعِ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ اِلَى الْعِشَاءِ وَ اَخَّرْتُكَ عَلٰى تَضْيِيعِ صَلٰوةِ الْعِشَاءِ اِلَى الْفَجْرِ فَكُلَّمَا ضَرَبَهُ ضَرْبَةً يَغُوْصُ فِى الْاَرْضِ سَبْعِيْنَ ذِرَاعًا فَلَا يَزَالُ فِى الْقَبْرِ مُعَذَّبًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَ اَمَّا الَّتِىْ يُصِيْبُهُ عِنْدَ خُرُوْجِهٖ مِنَ الْقَبْرِ فِىْ تَوَقُّفِ الْقِيَامَةِ فَشِدَّةُ الْحِسَابِ وَسَخَطُ الرَّبِّ وَدُخُوْلُ النَّارِ

وَ فِىْ رِوَايَتِهٖ فَاِنَّهٗ يَاْتِىْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَعَلٰى وَجْهِهٖ ثَلٰثَةُ اَسْطُرٍ مَكْتُوْبَاتٍ اَلسَّطْرُ الْاَوَّلُ يَا مُضَيِّعَ حَقِّ اللّٰهِ اَلسَّطْرُ الثَّانِىْ يَا مَخْصُوْصًا بِغَضَبِ اللّٰهِ اَلثَّالِثُ كَمَا ضَيَّعْتَ فِى الدُّنْيَا حَقَّ اللّٰهِ فَاَيِسْ اَلْيَوْمَ اَنْتَ مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ۔

نه ترما زیکره . او د ماز یکر نه ترماښام او د ماښام نه ترماسخوتنه او د ماسخوتن نه تر سحره

او چه کله ار ددکړی نو اوبا لاسه به یه ذمکه کښ ښخ شی . د غسے به تر قیامته په ده عذاب وی . او د قبر نه د دتو نه پس به په ده دا عذاب وی . یو به په حساب کښ د ده سره سختی کیږی . خدای به ورته قارو وی . دریم به په دوزخ کښ داخل کړیشی . دا څو ارلس دی پخلسم د راوی نه هیر دے . او په یو روایت کښ دی چه د ده به مخ به درے کیلے خطو وی . "اے د خدای د حق ضائع کونکیه ! . اے د خدای په غصه کښ کیره ! . څه رنګ چه تا د خدای حق ضائع کړو . د غسے ته نن د خدای د رحمت نه نا امیده شه .

فائده :- دا پوره حدیث د احادیثو په کتابونو کښ نشته . خو د دے نو ابونو عذابونو ذکر د روایاتو نه معلومیږی . ځکه چه په بلمانځه د اسلام نه بنده اوځی . نو بیا خو درله هر قسم عذاب ورکیدل یکاردی . اګرچه دا ګناه د شرک نه کم دے . نومعافی پکښ ممکن ده . که خدای او غواړی . د احادیثو نه معلومیږی . چه په قیامت کښ به درے قسمه عدالتونه وی . یو د کفر او اسلام دے . چه په دیکښ بخنه نشته . دویم د حقوق العباد دے . چه په دیکښ خامخا بنده ته حق ورکول دی . دا د دے بنده نه به د نیکو په رنګ کښ وی . که خدای یے ورته د ځا نه ورکوی . دریم د خدای د حقونو په باره کښ دے . په دیکښ به د بخنے دروازے پرا نستے شي . د عدل تقاضا خو دا ده چه بنده سزا بیا مومی . خو د خدای رحم زیات دے . نو کیدے شی چه الله یے او بخی .

خوږ نبیؐ به د سحر د مانځه نه روستو د اصحابونه د خوبونو تپوس کوو۔ دوی به که لیدلے وو۔ نو بیان به یئے کړو۔ او خوږ نبیؐ به ورته د دے مطلب بیان کړو۔ یوه ورځ خوږ نبیؐ خپل خوب بیان کړو۔ چه ما ته دوه سړی راغله۔ او زه یئے د ځان سره یو تلم۔ ما د غلته یو کس اولیده۔ چه د ده سر به ګټو ویشتے شه۔ چه ګټ به بیا راوچت کړے شه۔ نو څخړی سر به بیا جوړ وو۔ ده یه بیا او ویشته خوږ نبیؐ اووے۔ دا ولے؟ دوی اووے ده قرآن شریف ویلے وو۔ او بیا یئے نه لوستلو او فرض مونځ به یئے پریښوده۔ او اوده به شه۔ د عیسے د یو کتاب نه ټولګی حال خوږ نبیؐ اولیده۔ اودا په مانځه کښ نا راستیا کوونکی وو۔ مجاهد وائی۔ چه څوک د مونځ د اوقاتو ډیر خیال ساتی۔ نو په دیکښ به دا سے برکت وی۔ لکه په ابراهیم او د ده په اولاد کښ چه وو۔ حضرت انسؓ وے۔ چه خوږ نبیؐ وے۔ چه څوک د اخلاص ایمان لری۔ عبادت کوی۔ مونځ کوی۔ زکوٰۃ ورکوی۔ نو دے چه د دنیا نه ځی۔ نو خدائی به د ده نه رضا وی۔ د عیسے دے داحدیث نقل کوی۔ چه خدائی یو مقام ته عذاب لیږی۔ خو د غلته د جمات د آبادونکو په وجه عذاب اونه لیږی۔ او چه د خدائی د رضا د پاره د یو بل سره محبت کوی۔ په آخره شپه کښ بخنه غواړی۔ تو په د دے وجه عذاب موقوف شی۔ حضرت ابوالدرداءؓ حضرت سلمانؓ ته اولیکل۔ چه ډیر وخت جمات کښ تیروه۔ ما د خوږ نبیؐ نه اوریدلی دی۔ چه جمات د پرهیزګارو کور دے او خدائی به په ده رحمت کوی۔ ده ته آرام ورکوی۔ او په ده د پل صراط تله اسانه وی۔ او خدائی وائی۔ چه زه به د ده نه رضا یم۔ حضرت ابن مسعودؓ وائی چه جمات د خدائی کور دے۔ چه څوک د چا کور ته لاړ شی۔ نو د کور خاوند یئے عزت کوی۔ او ابو سعیدؓ وے۔ چه خوږ نبیؐ وے۔ چه څوک د جمات سره محبت کوی۔ نو خدائی به د ده سره محبت کوی۔ او ابو هریرهؓ وے چه خوږ نبیؐ وے۔ چه هر کله بنده په قبر کښ کیدی۔ نو خلق لا بیرته شوی نه وی۔ چه فرښتے د ده امتحان ته راشی۔ نو چه مؤمن وی نو مونځ یئے سرته اولاړ دی۔ او زکوٰۃ ښی غاړے ته۔ روژه کینړے غاړے ته۔ او باقی نورے نیکئ خپو غاړے ته۔ چه څوک ده ته نه پریږدی۔ نو فرښتے د لتے نه د ده نه سوال کوی۔ یو صحابیؓ دے۔ چه د خوږ نبیؐ د کور په خلقو به تنګی راغله۔ نو خوږ

نبیؐ به دوی ته دَ مونځ حکم اوکړو. او دا آیت به یې اووے وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ
چه دَ کور خلقو ته دَ مونځ حکم ورکړه. او په خپله هم دَ دے فکر اوکړه. مونږ
ستاسو نه روزی نه غواړو. داخو به مونږ درکوو. عوزه آخر دَ پرهیزګا رانو
دے. اسماء بی بی وے چه خوږ نبیؐ وے. چه په قیامت کښ به ټول خلق جمع شی او
دَ فرختو آواز به ټول اوری. نو تپوس به اوشی چه هغه څوک دی. چه
په آرام او تکلیف کښ به یې دَ الله ثناګانے وے. نو یو جماعت به پاسی. او دوی
به بے حسابه جنت ته ځی. بیا به تپوس اوشی هغه څوک دی. چه دَ شپے به یې
عبادت کوو. او دَ بسترو نه به اړخ ته وو. نو په دے به بل جماعت پاسی. او بے
حسابه به جنت ته داخل شی. او په بل روایت کښ دا سے دی. چه تجارت دَ مانځه
نه منع کړه. شیخ نصر سمرقندی وائی. چه هر کله خلق جنت ته داخل شی.
نو جهنم به لکه دَ اوبو څڅ راپورته کړی. دَ ده به دوه سترګے وی دے به
په صفا تکو وائی. چه زه به هغه څوک نیسم. څوک چه متکبره او بد مزاج
وی. او دوی به لکه دَ دانو وانړه وی. او جهنم نه به یې او غورزوی. بیا به
خوږ نبیؐ ته تکلیف رسونکی وانړه وی. او بیا به تصویر جوړه ونکی وانړه وی.
او دوزخ کښ به یې ارتاؤ کړی. نو بیا به حساب شروع شی.

وائی چه مخکښ به شیطان خلقو لیده. نو یو کس ده ته اووے. چه زه
به ستا په شان په کوم عمل اوګرځم؟ ده وے سوال دِ عجیبه دے. دَ مونځ
په نا راستئی به څما هسے شے. او هر قسم دروغ راښتیا قسمونه خوده. دَ سړے
اووے چه څه وعده کوم. چه هیڅ کله به مونځ نه پریږدم. او چرے به قسم
نه خوړم. شیطان اووے چه تا خو ډیر په چل څما نه دَ غرض خبره اوخکله. نو به
ده زه هم وعده کوم هم چه چا ته به نصیحت نه کوم.

حضرت اُبیؓ وے چه خوږ نبیؐ وے. چه دے امت ته دَ عزت او دَ ترقئی
زیرے ورکړه. خو کوم بنده چه دَ دین کار دَ دنیا دَ پاره کوی. نو په آخرت کښ
به دَ ده هیڅ برخه نه وی. خوږ نبیؐ وے چه ما خدائ ډیر په خاپسته رنګ کښ
اولیده. نو خدائ را ته اووے. چه بره ملائکے په څه خبره بحث کوی. ما وے

زه خوخبر نه یم. نو خدائ ځما په سینه لاس کیخو ده. سینه م یخه شوه. او بیا نے عالم ماته ښکاره شه. نو بیا یے تپوس اوکړو. ماوے ډیر تپے زیا تو نکو خبر و په باره کښ او د ګناهو نو د کفارے په باره کښ او د جمع د مانځه د پاره د تللو په ثواب کښ او په یخنئ کښ د ښه او دس په ثواب کښ او د یو مونځ نه تر بل مونځ د ناستے په فضیلت کښ چه دے به ښه ژوند تیر کړي. او په ښه حالت کښ به مړ شي.

په بل حدیث کښ دي. چه خوږ نبي و ے. نه دودے په اول کښ خلور رکعته مونځ کوه. نو ځه به په ټوله ورځ ستا کار کوم. یل حدیث تنبیه الغافلین لیکلے دے. چه مونځ د الله د رضا سبب دے. د فرښتو ډیر خوښ دے. د پیغمبرانو سنت دے. په دے د معرفت رنړا پیدا کیږي. دعایے قبلیږي. په رزق کښ یے برکت راځي. دے د ایمان ویخ دے. د بدن آرام دے. د دښمن خلاف توره ده. مونځ د مانځګذار سفارشي دے. په قبر کښ ډیوه ده. او د قبر یواځے والے لرے کوي. د منکیر نکیر د سوال جواب دے. او د قیامت په غرمو کښ سورے دے. په تیرے کښ رنړا ده. د جهنم د اور نه بچاؤ دے. د عملونو د تلے درونوالے دے. په صراط د تیزو تلو سبب دے. د جنت کنجي ده.

حافظ ابن حجر په منبهات کښ د حضرت عثمانؓ نه نقل کوي. چه څوک مونځ ښه په وخت او غور فکر سره کوي. نو خدائ په د ده په نهو خبرو عزت اوکړي. دے به د خدائ ډیر خوښ وي روغ موټ به وي. فرښتے به د ده څوکئ کوي. د ده په کور کښ به برکت وي. د ده د مخ نه به د صالحانو هسے رنړا خیژي. زړه به یے نرم وي. په پل صراط به د بجلئ هسے تیر شي. د دوزخ نه به خلاص شي په جنت کښ به د لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ د خلقو ملګرے وي.

خوږ نبيؐ فرمایي چه مونځ د دین ستن ده. په ده کښ لس ښه والي دي. د مخ رول. د زړه رنړا، د وجود آرام او روغوالے. د قبر خوښ والے. د خدائ د رحمت د نازلیدو ذریعه. د آسمان کنجي، د عملنامو د تلے وزن، د الله د رضا سبب. د جنت قیمت، او د دوزخ نه بچاؤ. چا چه مونځ قائم کړو نو ده دین قائم کړو. او چا چه پریښو ده نو دین یے او غورځوو. په بل حدیث کښ دي. چه مونځ

ډکوړ دنړادلا. کوډونه په دے روښانه کیږی. په قیامت کښ به ډاودس اندامونه بریښناکوی. او په دے به ډخوږ نبیؐ امت پیژندے شی. په مونځ ډشیطان مخ توریږی او په خیرات یې ملاماتیږی. ابوهریرهؓ یوګلا اریږمخے پروت وو. خوږ نبیؐ ورے ولے کیږي ډخوږیږی؟ ده وے او! خوږ نبیؐ ورے مونځ اوکړه. په دیکښ شفا ده.

خوږ نبیؐ په جنت کښ ډبلالؓ ډخپو شکالو واوریده. ډبلالؓ نه یې تپوس اوکړو چه دا ته کوم عمل کوے. چه په جنت کښ هم څما سره یې. ده وے په هرځے اودسی پسے اودس کوم. او بیا تحیة الوضوء کوم. سفیرئ وائی. چه ډسحر مونځ نه کونکی ته ملائکه وائی. اے فاجره! اوډما سپخین بیلیا څه ته. اے خاسره! او ډمازیګر هغے ته عاصی! او ډماښام هغے ته کافر! او ډما سخوتن بے نمازه ته مُضَیّع ډخدائی ډحق ضائع کونکی په نوم آوازه کوی. علامه شعرانی وے. چه مصیبت ډهغے آبادی نه بیرته کولے شی. کوم ځائی چه مونځ کیږی. او ډبیلما ځا نو په ابادئ غورځیږی. لکه زلزله بجلئ، ډزمکے خښیدلا شو. او ما مخکښ اس که بیلما ځا نو ته تبلیغ نه کوی. نو دوی پکښ هم ګیریږی. لکه خوږ نبیؐ فرمائیلی وو. چه که نیکان تبلیغ نه کوی. اوګناهونه غالب کیږی. نو دوی به هم پکښ راګیریږی. نو ډخپل طاقت برابر تبلیغ ضروری دے.

(۸) رُوِیَ اَنَّهٗ عَلَیْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ قَالَ مَنْ تَرَکَ الصَّلٰوةَ حَتّٰی مَضٰی وَقْتُهَا ثُمَّ قَضٰی عُذِّبَ فِی النَّارِ حُقْبًا وَالْحُقْبُ ثَمَانُوْنَ سَنَةً وَالسَّنَةُ ثَلٰثُ مِائَةٍ وَ سِتُّوْنَ یَوْمًا کُلُّ یَوْمٍ کَانَ مِقْدَارُهٗ اَلْفَ سَنَةٍ وَاَخْرَجَ ابْنُ کَثِیْرٍ فِیْ تَفْسِیْرِ قَوْلِهٖ تَعَالٰی فَوَیْلٌ لِّلْمُصَلِّیْنَ الَّذِیْنَ هُمْ عَنْ صَلٰوتِهِمْ سَاهُوْنَ ط اِنَّ فِیْ جَهَنَّمَ لَوَادِیًا تَسْتَعِیْذُ جَهَنَّمُ مِنْ ذٰلِکَ الْوَادِیْ فِیْ کُلِّ یَوْمٍ اَرْبَعَمِائَةِ مَرَّةٍ؛ اُعِدَّ ذٰلِکَ الْوَادِیْ لِلْمُرَائِیْنَ مِنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍؐ.

روایت شوے دے چه خوږ نبیؐ وے چه چا مونځ پریښودلا. تر دے چه وخت یې تیر شه. بیا یې قضا اوکړه نو دے به په عذاب کړے شی. دوره موده چه مقدار یې اتیا کاله دے. او ډکال یې درے سوه شپیته ورځے دی. او هره ورځ یې زر کاله ده. او ابن کثیر ډدے آیت په تفسیر کښ چه فَوَیْلٌ لِّلْمُصَلِّیْنَ دے وائی. چه دا ډدوزخ یوه کنده ده. چه جهنم هم ډدے نه پنا غواړی. هره ورځے څلور سوه کرته. دا کنده یې ته ډخپل مونځ ښودونکو ډپاره جوړه شوے ده په امت ډمحمدؐ کښ.

وَقَالَ اِبْنُ عَبَّاسٍ هُوَ مُسْلِمٌ مَنْ يُؤَخِّرُ الصَّلٰوةَ عَنْ وَقْتِهَا.

او ابن عباسؓ وئے چه دا دَ مونځ ذوخت نه رو ستوکو نکو دَ پاره دَه۔

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا قَالَ وَادٍ فِيْ جَهَنَّمَ بَعِيْدُ الْقَعْرِ وَخَبِيْثُ الطَّعْمِ.

او عبد اللهؓ بن عمرؓ دَ دے آيت په تفسير کښې چه فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا دے وائي چه دا دَ دوزخ يو ه ډيره ژورنګئ او بدبويه دَه۔

فائده:- حضرت عليؓ دَ هلالِ هجري نه تپوس کړے وو. چه دا حُقُب څومره دے وے اتيا کاله او هر کال دولس مياشتے. او هره مياشت دېرش ورځے او هره ورځ زر کاله. دغسے عبد الله بن مسعود او ابو هريرهؓ هم روايت کوي. عبد اللهؓ بن عمرؓ په وے. چه په دے خيال ډېنده نه وي. چه څه آخر کښې خو په جنت ته لاړ شو. ځکه چه په دے حساب به دوه کروړه اتيا لکهه کاله پس وانه هم څه لږ عمرؓ دے دغه دَه که څه کے زيلتے دَ اعمالو په لحاظ وي. ثوري په ابو الليث ثمرقندي په قرة العيون کښې وائي. چه څوک قصداً يو مونځ پريږدي. نو دَ دَه نوم دَ دوزخ په دروازه او ليکلے شي. او دے به جهنم ته ضرور ځي. خوږ نبيﷺ وچه دا سوال کوي چه خدائي موشقي او محروم نه کړي. او دا هغه کس دے. چه مونځ پريږدي. دَ ده به اسلام کښې څه حصه پاتے نه شوه. ده به دَ قيامت په ورځ خدائي نه کوري قدرے هم نه. دے به په دردناک عذاب عذابيږي. بيلا څه په لسو خصوصي عذاب مونده نکو کښې دے. لاس به يې تړلي وي. فرښتے به يې په شاوهي او جنت به وسته وائي. چه ځما او ستا په منځ کښې هيڅ تعلق نشته. او دوزخ به ورته وائي چه راځه ته ځما دَ پاره يې. دا هم نقل دے. چه په جهنم کښې "لَمْ لَمْ" نومے ځنځل دے. په دے کښې يه دَ اوبښ هومره ماران وي. چه اوږد دو لے به يې دَ يوے مياشتے دَ سفر هومره وي. په دے کښې به بيلا څه ته عذاب ورکيدے شي. بل حديث کښې حُبُّ الْحُزْن نومے ميدان دے. چه دَ لړمانو کور دے. چه دَ قچر هومره به وي. دوي به دا بيلا څه چيچي. اے خدايه ستا معافي خوښه ده مونږ معافي غواړو. ابن حجر په زواجر کښې ليکي. چه يوه ښځه مړه وه. او ورور يې په ښخولو کښې شريک وو. ده نه په قبر کښې تهيلئ او غورځيده. خوده او نه ليده. چه خلق لاړه

او دده را یاد شو. نو بیا راغے او قبرئے پرانستنه. چه تهیلئ را واخلی. نو قبر ډک
اوره لمبو نه ډک وو. دے بیو نه د مور سخه راغے. او د دے خور د حال تپوس یے
او کړو. دے ورته وے چه په ما خه کښ نا راسته وه. او مونځ به یے قضا کوه.

(۹) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَا سَهْمَ فِی الْاِسْلَامِ لِمَنْ لَا صَلٰوةَ لَهٗ وَلَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَا وُضُوْءَ لَهٗ. د ابو هریرةؓ نه روایت دے. چه خوږ نبی وے. چه د بیلما څه د یاره په اسلام کښ برخه نشته. او د بے اودسه مونځ نه کیږی.

فائده:- څوک چه سره د بیلما څئ خان ته مسلمان وایئ. او دے د اسلام د
حفاظت اوږ دے اوږدے دعوے کوی. دوی دِ لږ د خوږ نبیؐ فرمان ته فکر او کړی.
مخکنو که کتے کړیدی. نو د هغوی د حالا نو تحقیق دِ او کړی. چه هغوی دین څومره
معمول کړ څولے وو. څکه دنیا د دوی خپے ښکلولے. د عبد الله ابن عباسؓ په
سترګو کښ اوبه اوشوے. چاوے د دے علاج به او شی. خو یو څو ورځے به مونځ
نه تیے کولے. ده وے چه د بیلما څه نه به خدائے خفه وی. زه علاج نه کوم. چا
ورته وے چه پنځه ورځے به په لرګی سجده کوے. ده وے رو ند سره بیم. او
دا سے نه شم کولے. سره د دے چه دا عذر وو.

حضرت عمرؓ په آخره زمانه کښ په نیزه اوو هلے شه. لو دده نه به هر وخت
وینه تله. تر دے چه بے هوشه شه. او په دیکښ وفات شه. د نا جوړتیا په دوخو
کښ به دے بیدار کړے شه. نو ده به په دے حالت کښ مونځ اوکړو. او ده
به وے چه او څوک چه مونځ نه کوی د هغه په اسلام کښ برخه نشته.
مونږ خون ورځے نا جوړه ته وایو خیر دے مونځ مه کوه تا ته تکلیف دے
روستو په فدیه ورکړے. لږ دے فرق ته او ګوری.

یوکلدار حضرت علیؓ د خوږ نبیؐ نه د خدمت د یاره غلام او غوښته. خوږ
نبیؐ ورته او وے. دا غلام ما څکدار دے. دا واخله خو دے وهه مه. دما څکدار
وهل منع دی. او مونږ خو ما څکدار نوکر بے کاره او سپک ګڼړو. او دده د مونځ په
وجه زمونږ په کار کښ کے راځی. دے نه خوښوو.

په سفیان ثوری یوکلدار داسے حال راغے. چه او وه ورځے به بے حاله پروت

وو۔ خوراک سڅاک یې نه کاوو۔ خوب یې نه وو۔ شیخ دده نه خبر شه۔ ډیټوس اوکړو چه د مونځ په اوقاتو کښ یې څه حال دے؟ دوی ته اوو یلے شو۔ چه مونځ باقاعده کوی۔ دوی اوو ے چه شکر دے چې شیطان نه محفوظ دے۔

# دویم باب

## دَجماعت په باره کښ

ډیر خلق مونځ کوی خو دَجمع دَما نځه خیال نه ساتی۔ سره دَدے چه دَدے په باره کښ سخت تاکید راغلے دے۔ ځکه په دے باب کښ هم دوه فصلونه دی۔ اول دَ جماعت په فضائلو کښ۔ او دویم دَجمع دَپریښودو په سزا کښ۔

### اول فصل دَجمع دَمونځ په فضیلت کښ

(۱) عَنْ اِبْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ اَفْضَلُ مِنْ صَلٰوةِ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَّ عِشْرِيْنَ دَرَجَةً
(رواه مالک)

دَابن عمرؓ نه روایت دے۔ چه خوږ نبیؐ وے۔ چه دَجمع مونځ دَیواځے مونځ نه اووَبشت درجے زیات ثواب لری۔
(مالکؒ روایت کوی)

فائدہ:- اووِیشت درجے ثواب چه دَجمع په مونځ حاصلیږی۔ داپریښوده ډیره نادانی ده۔ دَیوے دوپئ ګټے په ځائی اووه ویشت روپئ نه اخستـه دَهوښیار کار نه دے۔ په اصل کښ دَدنیاګټه خو څمونږ یقین دی۔ او دَدین په ګټه مو یقین نه دی۔ ځکه مونږ داګټه په لږه خبره پریږدو۔ بل دَدین ګټه ګټه نه ګڼړو دَدین دپاره دکان بندول نقصان ګڼړو۔ او چه څوک داګټه ګڼړی نو خدائی دَهغوی ذکر کوی۔ چه "رِجَالٌ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ"۔ داسے نیکان سړی شته چه دَتجارة په وجه دَجمع مونځ نه پریږدی۔ اصحابو به چه بانګ داوریده نو دکانونه به یې زیږ شو۔ او سوداګر به یې بیا جرم ګڼړلو۔ په حکایات صحابه کښ په دا قسم قصے راشی سه

إِذَا مَا دَعَا دَاعِيكُمْ قُمْتُ سُرْعًا ؛ مُجِيبًا لِمَوْلَى جَلَّ لَيْسَ لَهُ مِثْلُ
هر کله چه بانګی بانګ پاسی نو زه زرپاسم ؛ دَبے مثله لوئی شان مالک دَحکم منلو دپاره
أُجِيبُ إِذَا نَادَى بِسَمْعٍ وَّ طَاعَةٍ ؛ وَبِي نَشْوَةٌ لَبَّيْكَ يَا مَنْ لَهُ الْفَضْلُ

چه بانګی چغه کړی نو زه ډیره خوشحالیږم او تابعدارئ څو آولیم چه د فضل خاوند حاضریږم

وَ يَضْفِرُ لَوْنِيْ خِيْفَةً وَ مَهَابَةً ⁂ وَيَرْجِعُ بِيْ عَنْ كُلِّ شُغْلٍ بِهٖ شُغْلُ

او زه د ویرې او رعب نه زیړ شم ⁂ او د خدای سره مشغولیږم د هر مشغولتیا نه ګرځم

وَحَقِّكُمْ مَا لَذَّ لِيْ غَيْرُ ذِكْرِكُمْ ⁂ وَذِكْرُ سِوَاكُمْ فِيْ فَمِيْ قَطُّ لَا يَحْلُوْ

ستا په حق م د قسم وی چه ستا د ذکر نه سوا بل ذکر ما باندې خوږ نه لګی.

مَتَى يَجْمَعُ الْاَيَّامُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ⁂ وَ يَفْرَحُ مُشْتَاقٌ اِذَا جَمَعَ الشَّمْلُ

چه زمانه به ما ستا سره کله جمع کړی ⁂ عاشق خو په ملاقات خوشحالیږی.

فَمَنْ شَاهَدَتْ عَيْنَاهُ نُوْرَ جَمَالِكُمْ ⁂ يَمُوْتُ اِشْتِيَاقًا نَحْوَكُمْ قَطُّ لَا يَسْلُوْ

چا چه ستا ښائست لیدلے دے. د هغه ستا په شوق کښی مړشی او د هغه چرې تسلی نشی کیدا.

په بل حدیث کښی راځی چه څوک ډیر جماعت ته ځی هغوی په د جمات منځ یان وی. فرښتې د دوی مجلسیانې وی. چه ناجوړه شی نو فرښتې یې پوښتنه ځی. او چه څه کار کوی نو فرښتې یې مدد کوی.

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم صَلٰوةُ الرَّجُلِ فِیْ جَمَاعَةٍ تَضْعَفُ عَلٰی صَلٰوتِهٖ فِیْ بَیْتِهٖ وَفِیْ سُوْقِهٖ خَمْسًا وَّعِشْرِیْنَ ضِعْفًا وَ ذٰلِكَ اَنَّهٗ اِذَا تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ خَرَجَ اِلَی الْمَسْجِدِ لَا یُخْرِجُهٗ اِلَّا الصَّلٰوةُ لَمْ یَخْطُ خُطْوَةً اِلَّا رُفِعَتْ لَهٗ بِهَا دَرَجَةٌ وَّحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِیْئَةٌ فَاِذَا صَلّٰی لَمْ تَزَلِ الْمَلٰٓئِکَةُ تُصَلِّیْ عَلَیْهِ مَا دَامَ فِیْ مُصَلَّاهُ مَا لَمْ یُحْدِثْ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَیْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ وَلَا یَزَالُ فِیْ صَلٰوةٍ اِنْتَظَرَ الصَّلٰوةَ.

ابو هریره رضی د حضور نبی ﷺ نه روایت کوی چه د سړی د جمع مونځ د کور او د بازار د مونځ نه پنځویشت مرتبې سیوا دے. او خبره داده. چه هر کله دے ښه اودس اوکړی. بیا صرف جمات ته د مانځه په غرض روان شی. نو په هر قدم د ده یوه مرتبه سیوا کیږی. او یو ګناه یې معاف کیږی. او چه مونځ اوکړی او د غلته کیني. نو ملائکې پرے پرله پسې دعاګانې چه تر څو بے اودسه نه وی. چه خدایه د ده بخښنه او په ده رحم اوکړې. او د بل مونځ د انتظار وجه ډیر په مانځه کښې وی.

دعاګانې

فائده :- دا د پنځویشت او ویشت فرق د ما څګند اس د ډیر اخلاص او لږ اخلاص په وجه دے یا چه د پټې د مونځ پنځویشت او د ښکاره مونځ او ویشت درجې دی.

بعضو علماء دغه سختوتن او د سحر د مونځ ذکران والی په وجه اوو بشت درجے او د باقی مونځو نو پنځویشت درجے ښودلی دی۔ بعض وائی چه اول اول پنځویشت درجے وے او بیا خدائے د زیات رحم په وجه اوویشت درجے کړے۔

بعض علما روائی چه د پنځو یشت برخ مطلب دے۔ چه د دے نه د جمع ثواب درے کروړه پنځه دیرش لکهه څلور پنځوس زره څلور سوه دوه دیرش جوړیږی (۲۳۴۴۵۵۳۳) او دا ثواب د خدائے د رحم نه لرے نه دے۔ چه د یو مونځ د پریخودو عذاب یئے هم دا پکار دے۔

و لے به نه وی۔ په یو یو قدم اجرو نه او د ګناه معاف کیدل بنو سلمه قبیله چه د جماعت خواته راتله۔ نو خو بنی ورته اووے۔ چه د لرے نه ستر ثواب دے۔

په بل حدیث کښ راځی چه د کور په اودس کښ جماعت ته تله د احرام د حج هسے دی۔ او بیا د فرښتو دوه د پاره دعاګانے غوښته۔ چه پاکے دی۔ دا برکت څو مره لویه خبره ده۔ محمد بن سماعه د درے دیاسه سلو کالو وو۔ ده به هره ورځ دوه سوه رکعته نفل مونځ کاوو۔ ده وے چه په څلویښت کاله کښ را نه یو ګذار اول تکبیر پاتے شو یدے۔ په دے روځ م مور مړه وه۔ او بیا یئے دا مونځ پنځویشت ګذاره اوکړو۔ چه دغه ثواب م اوسی۔ خو خوب م اولیده۔ چه په دبیکښ د ملا ئکو هغه آمین لښته چه هغه د امام د الحمد په آمین باندے ملائکے آمین وائی۔ او که د بنده آمین سره د دے آمین موافقت اوخوړ نو د بنده دوستی ټول ګناهو نه معاف شی۔ مولانا عبد الحی صاحب لیکی چه د دے مطلب دا شه۔ چه که بنده پنځویشت ګذاره بواځے مونځ اوکړی نو بیا هم د جمع د مونځ ثواب نه شی موندے۔ تر دے چه که زر ګذاره یئے اوکړی۔ نو هم۔ خو د فرښتو د دعا مستحق به هله کرځی چه مونځ یئے مونځ وی۔ هسے نه چه د زړه وجا مو هسے مونځ وی۔ چه په مخ یئے وبشتے شی۔

(۳) عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يَلْقَى اللهَ غَدًا مُسْلِمًا فَلْيُحَافِظْ عَلٰى هٰؤُلَاءِ الصَّلٰوةِ حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ فَاِنَّ اللهَ

د ابن مسعودؓ نه روایت دے۔ ده وے چه څوک به دے خوشحاله وی۔ چه صباته د خدائے سره د مسلمان په رنګ کښ ملاقات کول غواړی

شَرَعَ لِنَبِیِّکُمْ سُنَنَ الْهُدٰی وَ اِنَّهُنَّ
مِنْ سُنَنِ الْهُدٰی وَ لَوْ اَنَّکُمْ صَلَّیْتُمْ
فِیْ بُیُوْتِکُمْ کَمَا یُصَلِّیْ هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ
فِیْ بَیْتِهٖ لَتَرَکْتُمْ سُنَّةَ نَبِیِّکُمْ وَلَوْ
تَرَکْتُمْ سُنَّةَ نَبِیِّکُمْ لَضَلَلْتُمْ وَمَا مِنْ
رَجُلٍ یَتَطَهَّرُ فَیُحْسِنُ الطُّهُوْرَ ثُمَّ
یَعْمِدُ اِلٰی مَسْجِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ
اِلَّا کَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ بِکُلِّ خُطْوَةٍ یَخْطُوْهَا
حَسَنَةً وَ یَرْفَعُهٗ بِهَا دَرَجَةً وَ یَحُطُّ
بِهَا سَیِّئَةً وَلَقَدْ رَاَیْتُنَا وَمَا یَتَخَلَّفُ
عَنْهَا اِلَّا مُنَافِقٌ مَعْلُوْمُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ
کَانَ الرَّجُلُ یُؤْتٰی بِهَا بَیْنَ الرَّجُلَیْنِ
حَتّٰی یُقَامَ فِی الصَّفِّ (رواه مسلم)

نو د مونځ حفاظت دے په جماعت کښ کوی. ځکه چه
خدائی خوږ نبی ﷺ ته د هدایت سنت ښودلی دی
په دے کښ د جمع مونځ هم دے. که تاسو د
فلانکی هسے په کور کښ مونځ کوئ. نو تاسو
به د خوږ نبی ﷺ سنت پریږدئ. او په دے به گمراه
شئ. او څوک چه ښه اودس اوکړی. او
بیا بو جماعت ته لاړ شی. نو خدائی به
او لیکی د ده د پاره په بو بو قدم نیکی. او
یوه مرتبه به یې زیاته کړی. او یو گناه
به ورته معاف کړی. او مونږ خو صرف
معلوم منافق د جماعت نه پاتے لیدلے وو.
او د مسلمان خو دا حال وو چه په دواړو لاسو کښ
نیولے مریض به په صف کښ اودرولے شه.
چه د جمع مونځ اوکړی.

فائده :- خوږ نبی ﷺ چه ناجوړه وو. نو د غسے په صف کښ راوستے شوے وو.
او په آخری ناجوړتیا کښ به په بے هوشئ کښ راتله. او ډیر ډیر کله اراده به یې د اودس
او په غوښتے. یو کله اراده یې د حضرت عباس رض او حضرت علی رض په اوګو لاس کیخودونکے جمع
ته لاړه. چه خپه یې په زمکه هم کلکه نښوه کیخودے. حضرت ابوبکر رض په مانځه د امامتی
د پاره ولاړ وو.

د خوږ نبی ﷺ نه ابو درداء روایت کوی. چه ته داسے مونځ کوه. لکه چه ته خدائ
وینے. او ځان بالکل مړ فرض کړه. او د مظلوم د خیرو نه ځان بچ کړه. او که په تولند
در نه کیدے شی. نو د ماسخوتن او سحر مانځه ته لاړ شه. دا دواړه مونځونه په
منافقانو گران دی. که دوی د جمع د ثواب نه خبر وے. نو په تولند به ورغلی
وو.

(۲) عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ

انس رض د خوږ نبی ﷺ نه روایت کوی. چه

اللهِ صلعم مَنْ صَلّٰى لِلّٰهِ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا
فِيْ جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْاُوْلٰى
كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَتَانِ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ وَ
بَرَاءَةٌ مِّنَ النِّفَاقِ. (ترمذی)

خوږ نبیؐ وے چه چا چه څلویښت ورځے د جمع
مونځ داسے اوکړو. چه اول تکبیر یې لاندِ کړو.
نو د ده د پاره دوه پروانے شوے. یوه د دوزخ
نه د بچ کیدو او بله د منافقئ نه د بچ کیدو.

فائدہ:- چه بنده په اخلاص څلویښت ورځے د امام سره په اول اول کښ شریک شی. او مونځ اوکړی. نو دے د جهنم او منافقئ نه بچ شه. منافق په خولے مسلمان او په زړه کافر ته وائی. او دے داسے څکه نه دے. چه په څلویښت ورځو کښ د ده حالت بدل نه شه. په دیکښ خود نظئے غوښه جوړیږی. او دغه وجه ده چه صوفیا نو د څلویښتو ورځو چلّه د صفائی د پاره مقرر کړے ده. او چه لاډ دے نه په زیاتو ورځو کښ پابندی کوی خوهغه ډیر خوش قسمته دے.

(۵) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ
اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّاَ
فَاَحْسَنَ وُضُوْءَهٗ ثُمَّ رَاحَ فَوَجَدَ
النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا اَعْطَاهُ اللهُ مِثْلَ
اَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا وَحَضَرَهَا لَا يَنْقُصُ
ذٰلِكَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَيْئًا. (ابوداؤد)

د ابوهریرهؓ نه روایت دے چه خوږ نبیؐ
دے چه یو بنده ښه اودس اوکړی.
او بیا جمات ته لاړ شی. چه خلق
مونځ کړے وی. نو خدائی به ده ته د دغے
مانځګو اروهغسے ثواب ورکړی. او د دے نه
به کم نکړی هیڅ قدرے.

فائدہ:- د ده د کوشش الله قدر اوکړو. چه ده ته یې د مانځګو اروهومره ثواب ورکړو. ډیر مهربان خدائی دے. کو یا که د جماعت د کیدو ویره وی. نو بیا د هم د جمات تلو نه نه پاتے کیږی. څکه چه ثواب خو به یې اوشی. خوکه پوره یقین یې اوشه. نو بیا د پاتے شی.

(۶) عَنْ قُبَاثٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ
صلعم صَلٰوةُ الرَّجُلَيْنِ يَؤُمُّ اَحَدُهُمَا
صَاحِبَهٗ اَزْكٰى عِنْدَ اللهِ مِنْ صَلٰوةِ اَرْبَعَةٍ
تَتْرٰى وَصَلٰوةُ اَرْبَعَةٍ اَزْكٰى عِنْدَ اللهِ مِنْ
صَلٰوةِ ثَمَانِيَةٍ تَتْرٰى وَصَلٰوةُ ثَمَانِيَةٍ

قباثؓ دے. چه خوږ نبیؐ وے. چه دوه
تنه چه یو یې امام شی. د څلورو جدا
جدا مونځ کونکو نه ښه دے. دغسے
د څلورو جمع د اته یو ائے نه اودا تو
جمع د

بِؤُمُّهُمْ اَحَدُهُمْ اَزْكٰى عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ
صَلٰوةِ مِأَةٍ تَتْرٰى۔
وَكُلَّمَا كَثُرَ فَهُوَ اِلَى اللّٰهِ (رواه احمد)

سلو نه بنه دهٔ۔
د غسیے په بل روایت کښ دی چه څومره لوئ جماعت وی نو دومره د خدائ خوښ وی۔

فائده:۔ داخیال چه څه کوم یا دکان کښ به دوه څلورتنه په جمع مونځ اوکړو نو دا جمع نه دهٔ۔ دوی اول خو د جماعت د هغه یا کے زمکے د ثواب نه محروم شو بل لو یه کثره ترے یا تے شوه۔ او چه د خدائ د رضا کار کول غواړے۔ نو په هغه طریقه یے اوکړه۔ کومه چه د خدائ ډیره خوښه دهٔ چه هغه د جماعت د جمع مونځ دے۔ د خدائ د جمع داصف ډیر خوښ دے۔ بل د تهجد و مونځ بل د کافرانو سره جنګ کونکے یے خوښ دے۔

(۷) عَنْ سَهْلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم بَشِّرِ الْمَشَّائِيْنَ فِى الظُّلَمِ اِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّوْرِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (ابن ماجه)
وَفِىْ رِوَايَةٍ بَشِّرِ الْمُدْلِجِيْنَ اِلَى الْمَسَاجِدِ فِى الظُّلَمِ بِمَنَابِرَ مِنْ نُوْرٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَفْزَعُ النَّاسُ وَلَا يَفْزَعُوْنَ۔ (سیوطی)

سهل د خوږ نبیؐ نه روایت کوی۔ چه خوږ نبیؐ وے۔ چه څوک ډیر په تیروکښ جماعتونو ته ځی د دوی د پاره به په قیامت کښ پوره رنړا وی۔
په یو روایت کښ دی چه جماعتونو ته په تیرو کښ تلونکو ته دا زیرے ورکړه چه دوی به د قیامت په ورځ د نور په ممبرونو وی۔ خلق به یریږی او دوی به نه یریږی۔

فائده:۔ په دے تیرے کښ جماعت ته د تلو خوند به هغه وخت وی۔ چه د قیامت په تیروکښ به د دے رنړا خاوند دی۔ او رنړا هم د نمرنه ډیره۔ او لا چه د رنړا په ممبرونو ناست وی۔ او بنه بے فکره ناست وی۔ څه ښکلے انعام دے په مونږ ته یے هم راکړے۔ او خدائ به د خیل کاونړی ټیوس اوکړی۔ نو فرښتے به وائی چه هغه څوک دی۔ نو خدائ به وائی چه د جماتونو اباد ونکی جمات د خدائ محبوب او بازار یے مبغوض مقام دے۔ جمات ته خوږ نبیؐ باغ وئیلے دے۔ خوږ نبیؐ وے۔ چه څوک په جمات کښ ډیر وخت تیره وی۔ نو دے به دوه د ایماندارئ ګواهی اوکړی۔ او په دے یے د اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللّٰهِ آیت دلیل راوړه۔ جماتونه په خدائ او قیامت

ایمان زاوړونکی آبادوی. خوږ نبیؐ وائی چه په سختئ کښ اودس کونکی او جمات ته
تلونکی او دَ یو مونځ نه پس دَ بل مونځ انتظار کونکی دَ گناه نه پاک شو. او څومره چه
دَ لرې نه جمات ته راځئ دومره به ډیر ثواب کیږی. ځکه چه قدمونه ئے زیات دی.
او اصحابو به واړه قدمونه اغستنه. چه ثواب به ډیر شی. بل حدیث دے چه
ډیرے خیزونه دی. چه هغه که په جنګ حاصلیږی نو حاصل دِ شی. یو بانګ وئیل
په اول صف کښ اودریدل. دَ عزے نه مانځه ته تله. خوږ نبیؐ وائی. چه اووه
تنه به دَ قیامت په ګرمئ کښ په سوری کښ وی. یو پکښ هر وخت دَ جمات سره
زړه لګونکے دے. چه هر وخت جمات ته تله راتله کوی. او دَ دے دَ محبت په وجه
به دَ ده سره خدائ محبت کوی.

شاه ولی الله صاحب دَ جمع دَ مونځونو مصلحت داښودلے دے. چه دَ غلطو
رسمونو رواجونو دَ تباه کولو دَ پاره دا یو لوئ علاج دے. چه دَ یو عبادت رواج
پیدا کړے شی. او دا په جار او ښکاره کیدے شی. او هر څوک پکښ برابر وی.
او په دیکښ دَ یو بل نه مخکښ تلل خوښنوی. او دَ دے عبادت پریخوده ورته
ګران وی. او په عبادتو کښ مونځ ډیر لوئ عبادت دے. دَ ده خدائ سخه
ډیر لوئ قدر او عزت دے. نو مانځه ته رواج ورکول او دَ دے دَ پاره اجتماع کانے
کول. او په اتفاق مونځونه کول ډیر ښه کار دے. دَ دنیا خلق ډیر دے. یو ډیر
نیکان او صالحان وی. او څوک د دے نه کم وی. څوک دوی ته دَ عبادت وینا
او کړے نو دوی ورته راځی. او دریم هغه خلق وی. که دوی مجمع ته رانه ولے
نو دوی ناراستان وی عبادت نه کوی. ځکه مصلحت دا دے چه دوی ټول
مجمع ته را اوستے شی. چه عبادت کونکی او عبادت پریخودونکی جدا جدا شی
او په رغبت راتلونکو او بے رغبتو کښ فرق اوشی. او بے خبره خلق دَ عالمانو
نه خبر شی. او جاهلان دَ عبادت طریقه زده کړی. او کهره کوټه پکښ جدا
جدا شی. جائز جائز او ناجائز ناجائز کړے شی. او خلقو ته دا معلوم شی.

دَ دے نه علاوه هر کله چه په یو جمع کښ ګڼ او هر قسم خلق راشی.
او په ویره خدائ ته فخر کړی. نو په دوی دَ خاص برکتونو او رحمتونو نزول

شروع شی. او امت محمدیﷺ خو د الله د نوم پورته کولو د پاره پیدا دے. او دوی
په اسلام په نورو دینونو غالب کوی. او د دے د پاره په ښاریو باندو او هر
مقام کښ جمع کیدل او د مونځ عونډ ے عبادت ته رواج ورکول ډیره ښه طریقه
ده. ځکه شریعت د جُمعے او اخترونو ګنړے مقرر کړے. او بیا یخودونکو ته
یې د سزا وېره ورکړه. ګویا د جُمع کاوند، قبیلے د ټول ښار د جمع حکم یې
اوکړو. چه ځمونږ، کلی ښاریې هره ورځ، اته ورځے پس، او کال کښ دوه
ګذاره جمع کیږی. او مونځ په جمع او عامه ګنړے سره کوی.

# دویم فصل

## د جمع په پریښودو کښ سزا

څه رنګ چه د خدای د حکم په منلو انعامونه ورکیدے شی. د غسے یې
په نه منلو عذاب ورکوی. دا یې هم فضل دے. کنی منل خو ځمونږ له یو فرض
دے. په دے د انعام مونږ څه حق لرو. حق خو دا وو چه که مونږ حکم نه منلے
چه عذاب یې راکولے. ځکه چه مخلوق یو او د خدای د هر قسم د احسانا تو د
لاندے یو. او حکم نه منو نو دا ناشکره خو د هر قسم عذاب مستحق دے
د خاصے سزا د ذکر ضرورت نه وو. خو دا د خدای کرم او شفقت وو. چه مونږ
ته یې قسم قسم خبرداری راکړے. او د نافرمانئ د نقصانونو نه یې خبر
کړو. او په رنګا رنګ طریقو یې پوئ کړو. که مونږ بیا هم پوئ نه شو. نو
د ځان نقصان په کوو.

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ اِتِّبَاعِهِ عُذْرٌ قَالُوْا وَمَا الْعُذْرُ قَالَ خَوْفٌ اَوْ مَرَضٌ لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلٰوةُ الَّتِي صَلّٰى

ابن عباسؓ وائی چه خوږ نبیﷺ وے. چه
چا بانګ واورید او بے عذره مانځه
ته لا نړ نه شی نو دغه مونځ چه ځان ته یې اوکړی
نه قبلیږی. دوی وے عذر څه خوږ نبیﷺ وے
مرض یا ویره.

فائدہ :- امام ابو حنیفہؒ دَ دے قسم احادیثو مطلب داوائی۔ چه دے دَ انعاماتو نه محروم شه۔ دانه چه گنے مونځ بیٔ اونه شه۔ او بعض اصحاب اوتابعین وائی۔ چه دَ سرہ مونځ بیٔ اونه شه۔ دوی جماعت فرض منی۔ په یو حدیث کښ ده ته نافرمان وئیلے شوید ے۔ او ده نه سِنه اوکړه اونه به دَ ده سره سِنه اوکړے شه۔ او ابو هریرهؓ خووے۔ چه دَ ده په غوږو نو کښ ویلے سیکه ورُ واچولے وَی۔

(۲) عَنْ مُعَاذِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلعم قَالَ الْجَفَاءُ كُلُّ الْجَفَاءِ وَ الْكُفْرُ وَالنِّفَاقُ مَنْ سَمِعَ مُنَادِيَ اللّٰهِ يُنَادِيْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَلَا يُجِيْبُهُ (رواه احمد)

معاذ بن انسؓ دَ خوږ نبیؐ نه روایت کوی۔ چه سراسر ظلم کفر او نفاق دے۔ دا کا چه بانګ واوری۔ او مانځه دَ جمع ته نه ځی۔

فائدہ :- څومره اورو نه ده۔ چه دَ ده دے جماعت ته نه تله دَ کفر او نفاق کار اوګڼړلے شه۔ داخبره دَ مسلمان دَ شان نه خلاف خبره ده۔ وائی چه دا بد بختی او بد نصیبی کافی ده۔ چه بانګ واوری او جمع ته نه ځی۔ سلیمان نومے یو روستے سړے حضرت عمرؓ دَ بازار و نو حفاظت کو نګے مقرر کړے وو۔ دے یئ دَ سحر په مانځه کښ اونه لیده۔ عمرؓ دَ ده دَ مور نه تپوس اوکړو دے وے ټوله شپه یئ نفل کول نو سحر غافله شه۔ ده وے دَ سحر جمعَ دَ شپے دَ نفلو نه غوره ده۔

(۳) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ اٰمُرَ فِتْيَتِيْ فَيَجْمَعُوْا لِيْ حُزَمًا مِنْ حَطَبٍ ثُمَّ اٰتِيَ قَوْمًا يُصَلُّوْنَ فِيْ بُيُوْتِهِمْ لَيْسَتْ بِهِمْ عِلَّةٌ فَاُحَرِّقُهَا عَلَيْهِمْ۔

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے۔ ده وے چه خوږ نبیؐ وے۔ چه اراده مِ کړے وه۔ چه ځوانانو ته اووایم۔ چه لرګی جمعَ کړی۔ او زه به کورکښ مونځ کونکو ته اووایم۔ چه عذر یئ نه وی۔ چه په دوی اور بل کړم۔

فائدہ :- شفیق او مهربان خوږ نبیؐ په دے جمعَ نه کولو ډیر خفه دے۔ ځکه دَ دے قسم خلقو سوزول غواړی۔ کنی هغه خو په امت ډیر مهربانه وو۔

(۴) عَنْ اَبِی الدَّرداءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللہِ صلعم یَقُوْلُ مَامِنْ ثَلٰثَةٍ فِیْ قَرْیَةٍ وَلَا بَدْوٍ وَلَا تُقَامُ فِیْهِمُ الصَّلٰوةُ اِلَّا اسْتَحْوَذَ عَلَیْهِمُ الشَّیْطَانُ فَعَلَیْکُمْ بِالْجَمَاعَةِ فَاِنَّمَا یَاْکُلُ الذِّئْبُ مِنَ الْغَنَمِ الْقَاصِیَةِ

ابو درداء وے چه ما د خوب نبیؐ نه اوریدلی دی. چه دوی دے. چه په کوم کلی یا ځنګل کښ درے تنه وی. او هلته د جمع مونځ نه کیږی. نو په دوی به شیطان غالب شی. ځکه چه شرمخ جدا کله بیسی. شیطان د انسان شرمخ دے.

فائده:- ګویا زمیداران که دوه درے تنه وی. نو هم دوی ته پکار دی. چه د جمع مونځ اوکړی. دوی خو اکثر مونځ نه کوی. دوی دغه زمیداری کار ګټری. او چه په دوی کښ دیندار کا دی. نو هغوی ځان ته اوکړی. د څلورو پیسو د پاره په ګرمئ سړځئ، باران هیڅ پروا نه لری. او د جمع بے شماره ثوابونه ګټی. سره د دے چه د دے قسم خلقو د یو مونځ د پنځوسو مونځونو ثواب را غلیدلے. تر دے چه که یو شپونکے که په غره کښ بانګ اووائی او مونځ اوکړی. نو خدائی د ده نه ډیر خوشحالیږی. او په فخر فرښتو ته وائی. چه اوګورئ ځما د ویرے دا بنده بانګ او مونځ کوی. ما دے اوبخښه. او جنت مے ورکړو.

(۵) عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ یَصُوْمُ النَّهَارَ وَیَقُوْمُ اللَّیْلَ وَلَا یَشْهَدُ الْجَمَاعَةَ فَقَالَ هٰذَا فِی النَّارِ (ترغیب)

د ابن عباسؓ نه د داسے سړی په باره کښ تپوس اوشه. چه د ورځے روژه لری. او د شپے نوافل کوی. خو د جمع مونځ نه کوی. نو ده اووے. چه دے به اور کښ دے.

فائده:- اګر که دے به پس د څه مودے نه د اور نه راووځی. خو دا به هم څه ډیره موده وی. جاهلان صوفیان وظیفے او نفلونه کوی. او د جمع د مانځه پروا نه کوی. او دے ته زیرکی وائی.

حدیث دے. چه خلق پرے ناراض وی. او دے امامتی کوی. نو دا امام لعنتی دے. خو چه وجه معقوله وی. او چه د خزے نه خاوند خفه وی. او چه بانګ واوری او مونځ ته نه ورځی.

(۶) عَنْ کَعْبِ الْاَحْبَارِ قَالَ وَالَّذِیْ اَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰی مُوْسٰی وَالْاِنْجِیْلَ

د کعب احبار نه روایت دے. ده وے. چه ځما د په هغه خدائی قسم وی. چه تورات

عَلٰى عِيسٰى وَالزَّبُوْرَ عَلٰى دَاوٗدَ وَ
الْفُرْقَانَ عَلٰى مُحَمَّدٍ أُنْزِلَتْ هٰذِهِ
الْاٰيَاتُ فِي الصَّلٰوةِ الْمَكْتُوْبَاتِ حَيْثُ
يُنَادِيْ بِهِنَّ يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ
سَاقٍ اِلٰى سَالِمُوْنَ الصَّلٰوةَ الْخَمْسَ
اِذْ نُوْدِيَ بِهَا (بيهقي)

يۓ په موسیٰ او انجيل يۓ په عيسیٰؑ او زبور
يۓ په داؤدؑ او قرآن يۓ په محمدﷺ چه دا
آيتونه دَ فرض مونځونو په باره کښ دي.
چه هلته بانګ اوشي او دَ جمع مونځ کيږي.
خدائ به دَ پنډۍ نه تجلي ښکاره کړي. او
خلق به سجدے ته را اوغورځيږي شي. او دوي
په سجده نه کوي. او دوي به ښکته کوږ ذليل به وي. ځکه چه دوي به په دنيا
کښ سجدے ته رابللے شو او دوي به سجده نه کوله.

فائده:- دا دَ پنډۍ تجلي يو خاص قسم روڼائيا ده. چه دَ قيامت
په ورځ به اوشي. او مسلمانان به ورته په سجده پريوځي. خو دَ بعضو ملاګانے
تخته شي. او سجده به اونه کړے شي. نو دا دَ کعبؓ احبار او ابن عباسؓ په نزد
دَ جمع مونځ نه کونکي دي. په بعض رواياتو کښ دا دَ ريا مونځ کونکي دي. او بل
ددے نه مراد منافقان دي. بهرحال دا څومره دَ ذلت او شرم خبره وي. چه ټول
مسلمانان په سجده پريوځي. او دے سجده نه شي کولے. خو دے لکه دَ خرپړي نيغ پاتے
شي. دا قسم ډير نور عذابونه په رواياتو کښ شته. خو دَ مسلمان دَ پاره يو هم
ډير دے. دے خو په دے هم دَ خوږ نبيﷺ په فرمان عمل ته تيار يدے شي. او
چه څوک دَ خوږ نبيﷺ دَ احاديثو قدر نه کوي. نو ده ته په نړکونو هم کم دي
چه دَ سزا وخت راشي. نو پښيمانه به شي. خو بے فائدے.

# دريم باب

## دَ خشوع خضوع په باره کښ

ډير خلق دَ جمع مونځ نه کوي. خو دا مونځونه دَ دوي په مخونو ويشتے شي.
اګر که دَ ته مونځ نه ښه وي. ځکه چه دَ هغے به عذاب وي. او دے خو قبول ئدَ
نه شو. په هغے کښ نافرماني ده. او دلته خو تعميل اوشه. خوهر کله چه يو بنده
وخت ورکړي. کار دو برابر دي. نو پکار دي چه دومره کوشش اوکړي. چه

چه د امونځ ډیر نه ډیر قیمتي کړي. ځکه چه لکه د قربانۍ په باره کښ خدای
وائي. چه خدای ته غوښې او وینې نه رسي. خدای ته پرهیزګاري محبوبه
ده. نو چه څومره په هر عبادت کښ اخلاص وي. دومره د هغې قبولیت وي.
معاذ ته د یمن د حاکم د لیږلو په وخت کښ خوږ نبيؐ وصیت کوي. چه په هر کار
کښ اخلاص کوه. په دے باندے لږ عمل زیات قدر مند کرځي. خوږ نبيؐ
اخلاص کونکو ته دعا کوي. چه خدای دِ دوی خوشحاله کړي. دوی د
هدایت ډیوے دي. د دوی په برکت سختے فتنے لرے کیږي. خوږ نبيؐ وئے
چه د کمزورو په برکت خدای د امت امداد کوي. د دوی دعا ګانے د دوی
د اخلاص مونځونه برکتي وي. خدای په قرآن کښ ډیره خرابي د هغه
کسانو د پاره وائي. چه د مونځ نه بے خبره وي. د ښودنے د پاره مونځ کوي.
چه وخت ورنه هیر وي قضا مونځ کوي. یا داچه په څه کار کښ الهام وي.
مونځ ته یې توجه نه وي. د رکعتونو پته ورته نه وي. دا د سَاهُوْنَ تفسیر
دي. او د منافقانو په باره کښ فرمائي. چه دوی مانځه ته اودریږي. نو غرض
یې ښودنه وي. په ناراستیا مونځ کوي. د خدای ذکر نه کوي مګر لږ. غوندے
د یرو پیغمبرانو د اولاد په باره کښ خدای وائي. چه دوی مونځونه برباد کړل
او د نفس په خواهشاتو پسے اونګیده. نو د دوی آخرت به خراب وي. د آخرت
خرابئ ته "غَیّ" وائي. بعض وائي چه دا د دوزخ یوه طبقه ده. چه په دیکښ
په وینے زوے جمع وي. نو په دیکښ به دا قسم ریاکار څورزولےشي. د هغه چا
خیراتو نه چه رسول نه مني. او مونځونه نه کوي او چه کوي نو په ناراستیا ئے
کوي. او خیرات په نیک کار کښ په خوشحالئ نه لګوي. دا نه قبلیږي. او د بنده
مانځګدارو په باره کښ د اتلسمے پارے په شروع کښ دوی ته د ګټے زیرے ورکیږي.
چه په عاجزئ مونځ کونکو ګټه اوکړه. دوی هر وخت د مانځه په فکر کښ پراته
وي. هم دوی د جنت وارثان دي. او جنت هم جنت الفردوس. چه همیشه به
پکښ وي. دا د جنت ډیره اعلی طبقه ده. هم د دے ځائي نه د جنت ولے وتي دي
په دے د پاسه عرش دے. وائي چه جنت غواړئ نو جنت الفردوس غواړئ.

خدائ وائي چه داموني کران دے. خو په عاجزی کونکو کران نه دے. ځکه چه دوی په قیامت کښ د خدائ سره د ملاقات یقین لری. هم د دے خلقو په تعریف کښ خدائ وائي. چه دا خلق په هغه جماتونو کښ چه د هغے د ادب او اوچت ساتلو حکم دے تسبیح سحر او ماښام وائي. او دوی تجارت د مونځ او ذکر نه نه منع کوی دا خلق د قیامت د زړه او د سترګو اوړیدو نه یریږی. او دوی دا مونځونه او ذکرونه په دے طمع کوی. چه دوی ته به خدائ ډیر ثوابونه ورکوی. او دوی د انعامونو په طمع دی. او الله بے حسابه بخښنے کوی. ځکه چه د خدائ د ورکړو د دروازه ډیر فراخه پرانستے پرته ده. ابن عباس د مونځ قا عول بیے رکوع او بیے سجدے او په عاجزئ کو لو ته وائي. قتاده چه دا د وخت خیال ساتل ښه او دس او رکوع سجده کول دی. هم د دے قسم ما څکند اره و په باره کښ خدائ پاک وائي. چه د رحمان ښه بندګان هغه دی. چه په زمکه په قلاره قلاره ځی. او که جاهلان ورته بیے خبره کوی. نو دے ورته د لرے نه سلام کوی. او ډیره شپه په سجدو کښ تیره وی او مونځونه کوی. هم د دوی د پاره د جنت بالاخانے ثواب دے. ځکه چه دوی صبر کو نکی وو. او د جنت فرښتے به د دوی مخے ته راځی. او دوی به همیشه همیشه به دے جنت کښ وی. څه ښه ځکونړه ده او سبه ورځائی دے. د هرے دروازے نه به ورته فرښتے سلامونه کوی. دا ځکه چه خلق به اوده وو. او دوی به د شپے بسترے پریښودے. او په مونځ به اولګیده. دوی د عذاب نه یریده او د ثواب په طمع وو. د دوی د سترګو د یخوالی به څیزونو څوک نه دی خبر. دا متقیان به په جنت کښ د چینو په منځ کښ وی. او دوی به دا نعمتونه په خوشحالئ خوشحالئ اخلی. دوی خو هم د دے د پاره د شپو شوګیرے کولے. او سحو به یې وے. چه شپه تیره شوه. او هیڅ مواونه کړه. ربه! دا کوتاهی راته معاف کړے. خدائ بے دینه خلقو ته وائي. چه ښه! نو تاسو او دا د شپے په اولاړے او په سجدو کښ پراته دینداران یو برابر کیدے شئ؟ دوی د رحمتو نو امید وار دی. تاسو جاهلان او دوی عالمان دی. نو تاسو دوی کله برابر کیدے شی. خدائ وائي چه د بنی آدم ډیر کمزورے زړه دے چه سختی پرے راشی. نو ډیر او یریږی. او چه څه ښه بیا مومی نو بیا بخیل شی.

چه بل ته خبر او نه ړ سي. خو ما تخکنړ ایوخ زېره لري. دوی په قلاړه کا مونځ کوي
ځکه د دوی به په جنتونو کښې عزت کیږي.

د غسې ډېر ایتونه دي. چه په دیکښې د مونځ حکم او د ما نخکنړ او فضائل د
دوی عزتونه ذکر دی. او دا ډیر قیمتي عبادت دے. ځکه د خوږ نبي په پوسترکے
پخیږي ے. او حضرت ابراهیم د ځان د پاره او د اولاد د پاره دعا کوی. چه مونږ د
مونځ سنه په غور او فکر اد اکونکی او ګرځوے. او وایي چه خدایه دا دعا م قبوله
کړے. او خدایي خوږ نبي ته د دے مونځ حکم کوی. چه په خپله هم مونځ کوه. او
د کور خلقو ته هم د دے حکم کوه. مونږ خو په تا روزي نه کښو روزي خو به خدائي
در کوی. او ښه آخر د پرهیزګار ووے.

دغه وجه ده. چه تنګی به را غله. نو خوږ نبي به د کور خلقو ته د ما نځه حکم
کوو. او دا آیت به یې ورته اووے. دغه د اصحابو هم عمل وو. خو مونږ د دے د
سره مخالف یو. هسے خو د اسلام او د مسلمانۍ لوئي لوئي دعوے کوو. او مونځ د
سره نه کوو. او که څوک ورته د مونځ بلنه ورکړي. نو په دوی پورے توقے ټخړے
کوو. په دے دوی د ځان نقصان کوی. بعض خلق یکښې مونځ کوی خو هغه د کار نه
ټو نکے وی. دا په اصل کښې په مانځه پورے یو قسم ټوقه ده. په تا دي کښې عاجزي
کله راځي. مونږ ته خوږ نبي په خپل عمل د مونځ نمونه ښودلے ده. نو د دے
مونځ د هغه مونځ سره کله مناسبت دے. الله دې زمونږ صحیح مونځ نصیب
کړي. د صوفیانو یو څو قصے لیکم. چه تا سو ترے اندازه او لګوئي. چه مونږ په
تحومره اونو کښې یو.

شیخ عبد الواحد یوه ورځ وظیفه او نکړه. او اوده شه. نو ده خوب ولیدل
چه یوه ډیره ښائسته په ښه جامو کښې ډولي جینئ د سرنه ترخپو په تسبیح کښې اړم
ده. او ده ته وایي چه ځما په طلب کښې کوشش کوه. زه هم تا غواړم. بیا یې ځه شعرونه
اووے. دے چه راویښ شه نو قسم یې اوخوړ. چه د شپے به خوب نه کوم. ده به د
ماسخوتن په اودس د سحر مونځ کوو.

شیخ مظهر سعدی دا سے عاشق وو. چه شپیته کاله یې ژړا ګانے کولے. یوه

شپه يې د مشکو په شان وږمه اوليده. د دې په غاړه د ملغلرو وړې وې. د سرو زرو ګانټې يې وې. او د دې په خوا کښې پیغلو جينکو تسبيحات وې. ده ترې تپوس اوکړو. چه ته سوڅوک يې. دوی ورته په شعرونو کښې اووې. چه موږ خدائ د هغه خلقو د پاره پيدا کړي يو. چه څوک خدائ ته په قدمونو ولاړ وي. او د خدائ سره ناز او نياز کوي.

ابوبکر ضرير وې. چه زما يو غلام وو همیشه به روژه دار وو. او تهجد به يې کوه. د دې يوه ورځ راغې او ما ته يې اووې. چه ما نن دا خوب اوليده. چه محراب او شليدو. او د دينه يوه ډيره ښائسته جينۍ راښکاره شوه. خوشبوئي ترې تله. ما دا سې ښکلې چرته نه وو ليدلې. د دې لاس کښې يوه د کاغذ قطعه راکړه. چه په هغې کښې د دې مطلب شعرونه وو. چه ته په خوب کښې غافل اوده شوې. او ته د هغه جنت نه غافله شوې چه ته به پکښې هميشه اوسې. او هلته به مرګ نه راځي. د خوب نه پاسه په تهجد و کښې قرآن لوسته ډير غوره دی. د دې نه پس چه خوب راشي. نو دا شعرونه را ياد شي —— حضرت عطا وې. چه په بازار کښې يو لونډۍ مشهوره وينځه خرسيده. ما دا په اووه اشرفۍ واخسته. چه شپه شوه. نو دې اودس اوکړو. او په يو څه لمونځ کښې يې شروع کړو. په ژړا وه او دا سې به يې وې. چه اے خدايه زه د تا په هغه محبت قسم درکوم. چه ستا زما سره دې. په ما رحم اوکړه. ما ورته آواز ورکړو چه دا سې وايه. زه په هغه محبت قسم خورم چه زما ستا سره دې. په دې دا ډيره ګرانه شوه. او دې اووې. چه که د خدائ زما سره محبت نه وې. نو زه به په ما څه ويده پاته وم. او ته به اوده پروت وې. بيا يې مخ او غورځوله او د دې مطلب شعرو يې اووې. "بے آرامي م زياتيږي. زړه م سوزي او صبر م لاړ او اوښکې م بهيږي. هغه بنده په څه رنګ قرار اوکړي. چه هغه د عشق په بے آرامو کښې ګيروي. اے خدايه که د خوشحالۍ څه شي وي نو هغه راکړه. او ما احسان اوکړه". بيا يې په اوچت آواز دعا اوکړه. چه اے ربه زما او ستا معامله تر اوسه پټه وه. او اوس ښکاره شوه. نو اوس ما واخله. د دې نه پس يوه چغه يې او وهله او مړه شوه. إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ ؕ

د غسیے حضرت سرّیؒ هم دَ خپلے وینځے واقعه بیانوی. چه اے خدایه دَ هغے محبت
په وسیله چه ستا ځما سره دے. ځما دا فلانے کار اوکړے. ما ورته وے. چه داسے
وایه. چه دَ هغے محبت په وسیله چه ځما ستا سره دے. ځما دا کار اوکړه دَے را ته
اووے چه که دَ خدائ ځما سره محبت نه وے. نو زه به په مانځه ولے ولاړه وم. او ته به
اوده ولے وے. سحر مِ دا را اوغوښته او ما ورته اووے. چه ته ځما دَ خدمت
قابله نه یې. خو دَ خدائ دَ عبادت قابله یې. او څه سامان مِ ورکړو او آزاده مِ کړه.

د غسیے سرّیؒ دَ یوے دَ تهجّد والا دعا بیان کوی. چه دے به وے. اے خدایه
ابلیس هم ستا بنده دے دَ ده تندے هم ستا په قبضه کښ دے. دے ما وینی
او زه یې نه وینم. خدایه ته دے وینې او دَ ده په ټولو کارونو قادر یې. او دَے
ستا په کارونو قدرت نه لري. خدایه که دے ځما بدی غواړي. نو ته یې را نه
دفع کړه. که دے ځما سره مکر کوی. نو ته ترے بدل واخله. زه په تا دَ ده دَ
شر نه پناه غواړم. او ستا په مدت دَ ده نه د قربه ورکوم. بیا یې ژړا شروع کړه.
تر دے چه یوه سترګه یې ړنده شوه. دے به وے که دا جنتی سترګه وی. نو
خدائ به دَ دے نه غوره راکړی. او که دوزخی وی نو لرے والی یې ښه دے.

شیخ ابو عبد الله وے. چه یو کال را ځما مور ځما پلار ته دَ مهی
راوړو وینا اوکړه. دوی بازار ته لاړه. زه هم ورسره وم. مهی یې واغستله.
یو مزدور ور سره راپورانه کړو. مزدور په لار کښ بانګ واوریده. ده مے پلار ته
اووے. چه دَ خدائ دَ طرف نه بلنه را غله. زه به اودس کوم. دا مهی په دَ مانځه
نه پس درا اوړم. نو ته را ته یا انتظار اوکړه. کنې خپل مهی دِ واخله او څه —
پلار مِ وے. چه مزدور دَ خدائ بلنے داسے تعمیل کوی. نو څه ولے جمات ته
نه ځم. دوی هم مانځه ته لاړل. مونځ اوشه او مهی یې را واغستې. کور
مِ پلار مور ته دَ مزدور دا قصه اوکړه. دے ورته اووے. دے حصار کړه.
چه دے هم مهی اوخوری ده. ته چه او ویلے شو. نو ده اووے. چه ځما خو روژه
ده. پلار مِ ورته اووے. چه ماښام روژه ماتی ته را اشه. ده وے ښه ده.
زه به په دے جمات کښ یم. ماښام به روژه ماتی ته راشم. ماښام را اغے

پروړئ یې اوخوړه. ماورته دَحصاریدو بوځائ اوښودو. څمونږ په خوا کښ بوه کوړه شله بنځه اوسیدله. هغه روغه موټه راغله. مونږ ورته داخه رنګ جوړه شوے. دے وے ماته دے مبلمه په طفیل دَخدائ نه سوال اوکړو. نوځه خدائ جوړه کړم. مونږ چه دَ دکا دَخلوت ځائ ته ورغلو. نو هغه هلته نه وو.

دَیو بزرګ قصه ده. وائي چه دَ ده په خپه ننګئ وه حکیم وے چه که دَ ده خپه پرے نکړے شوه. نو دَ ماک وبره ده موږېدے واړه اوکړه چه دے په مانځه اوداریږی. نو بیا نه یو هیږی. خپه ترے پریکړی.

ابو عامر وے چه یوه تینه وینځه په بازار کښ ارزانه خرسیدله. خواړه واړه ویځه یې لرل. ماته پرے رحم راغے. ما واغستمه. ما ورته اووے راځه دَروژے میاشت ده. چه په بازار کښ څه واخلو. دے وے شکر دے. چه ماته خو ټولے میاشتې دَ روژے هسے دی. دے په همیشه روژه لرله. ټوله شپه به یې مونځونه کول. چه اختر شه نو ماورته وے. راځه چه په بازار کښ اختر ته څه واخلو. دے راته اووے. آقا ته دَ دنیا سره ډیر شغل لرے. دننه لاړه او په خوندخوندیې په مانځه کښ قرآن شریف لوستنه. تردے چه وَسِيْقَ الَّذِيْنَ مِنْ مَاءٍ صَدِيْدٍ ته اورسیدله. دا یې بار بار دے او په دے کښ دَ دنیا نه رخصت شوه.

دَ دین په کارونو کښ دَ داسے محبت کونکو ډیر واقعات شته. دَ دوی سره سیالی خو ډیره ګرانه ده. لکه دَ عمربن عبدالعزیزبي وے. چه په عباداتو کښ مشغول خلق خو یه ډیر وی. خو دَ ده هسے دَ خدائ نه دیربدونکی په کم وی ده په دَما سخوتن مونځ اوکړو. په مصلے به ناست وو. دَ دعاد پاره به یې لاس پورته کړه. اوژړل به یې تردے چه دے به اوده شه. بیا به چه راویښ شه نو بیا به یې ژړل. داوائي چه دَ خلافت نه پس دکا ته لویه بې اودسی نه وه راغلے. دَده بي بي دَ عبدالملک باچالور وه. دے ته پلار ډیرکالی اوجواهرات ورکړی وو. او یوه پکښ بے مثله "هیره" وه. دے ته ده اووے. چه دا ټول کالی به

بیت المال کښې داخل کړه یا خزانه جدا شه. دا نه شي کیدے چه دا کالي او زه په یو کوټ کښې اوسو. بي بي ورته اووے چه زه خو تا په هیڅ حالت نه پریږدم. داخل یې کړه. چه دے وفات شه او د عبد الملک ځوئ یزید باچا شه. نو ده دے ته اووے. چه که ته غواړے چه دا درته د بیت المال نه بیرته درکړم. دے ورته اووے. چه ما د عمر بن عبد العزیز په ژوند په دے خوشحالي اونه کړه نو په مرګ به یې څه خوشحالي اوکړم. د ده دیارلس اولاده وو. د ده د دوي دیاره هیڅ نه وو پریخي اوده به وے. چه که نیکان وي نو خدائ وائي وَهُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْن خدائ د نیکانو کار ساز دے. او که ناکاره وي نو زه د دوي پروا نه لرم.

امام احمدؒ به بتوله ورځ درس ورکوو. او په شپه او ورځ کښې به یې درے سوه رکعتونه کول. سعید بن جبیر به په یو رکعت کښې د قرآن ختم کوو.

محمد بن منکدر به په دے آیت چه وَبَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَالَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ او دوي ته به د عذاب هغه حالت پیښ شي. چه د دوي به اډ وګمان نه وو. زار زار ژړل. او دے د مرګ په وخت کښې هم د دے آیت نه یریده.

ثابت بناني مشهور محدث به ډیر زیات ژړل. چا ورته اووے ړوند به شے ده به وے د سترګو غرض ژړا ده ده به سوال کوو چه په قبر کښې که چا ته د مونځ اجازت کیدیشي نو ما ته دِ هم اوشي. دے چه ځخ شه نو ابو سنان ګواهي کوي چه د ده د لحد نه یوه خښته او غورزیده. چه ما اوکاته نو ده مونځ کوو. دا د ده دعا وه چه د ده دا حال د ده لور خلقو ته اووے.

امام ابو یوسف قاضي القضاة او علمي مشاغل لرونکي به دوه رکعتونه په شپه او ورځ کښې کول. محمد بن بشر به ډیر د استغراق مونځ کوو یو ګذار مچئي او چیچه وینے توے او بهیدے ولے د ده په خشوع خضوع کښې فرق رانغے دے به د لرګي هسے ایغ نیغ ولاړ وو. بقي بن مخلد به روزانه په تهجد وکښې د قران شریف ختم کوو.

د امام اعظمؒ متعلق عام مشهوره خبره ده چه د ماسخوتن په اودس یې څلویښت پنځوس کاله د سحر مونځ کړیدے. دوي به د سنتو د تا بعد اری به

وجه د غمے خوب کوؤ.

امام شافعیؒ به په رمضان کښې شپیته ختمونه کول. صرف په شپه کښې لږ قدرے اوده کیده. امام احمد بن حنبلؒ به درے سوه رکعته کول. او چه باچا په کوړو اووا هه او کمزورے شه نو یو نیم سوه رکعته به یې کول د دوی عمر اتیا کاله وو. د غسے بے شماره واقعات دی. خدائ د مونږ ټولو ته څه حصه د خپل فضل نه د دوی د تابعداریٔ نصیب کړی. (آمین)

(۱) عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صلعم يَقُوْلُ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَنْصَرِفُ وَمَا كُتِبَ لَهُ اِلَّا عُشْرُ صَلٰوتِهٖ تُسْعُهَا ثُمُنُهَا سُبُعُهَا سُدُسُهَا خُمُسُهَا رُبُعُهَا ثُلُثُهَا نِصْفُهَا

د عمار د یاسر د ځوئ نه روایت دے چه بنده د مانځه نه اوزګاره شی. او د ده د مونځ لسمه اتمه نهمه، اومه، شپږمه، پنځمه څلورمه دریمه، نیمه قبوله شی.

دا د مرتبو اختلاف د خشوع خضوع په وجه راځی. بعضو ته پوره هم ورکیدے شی. او بعضے اوږد د ثواب نه محروم شی. حدیث دے چه د هر مانځه یو خاص مقرر وزن دے. څوک د دے برابر شی. څوک د اخلاص په برابر کم شی. حدیث دے چه اول اول به د امت نه په عاجزیٔ مونځ پورته شی. تر دے چه په ټوله جمع کښې به یو هم د عاجزیٔ مونځ نه کوی.

(۲) رُوِیَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم مَنْ صَلَّی الصَّلٰوةَ لِوَقْتِهَا وَاَسْبَغَ لَهَا وُضُوْءَهَا وَاَتَمَّ لَهَا قِيَامَهَا وَخُشُوْعَهَا وَرُكُوْعَهَا وَسُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ بَيْضَاءُ مُسْفِرَةٌ تَقُوْلُ حَفِظَكَ اللهُ كَمَا حَفِظْتَنِيْ وَمَنْ صَلَّاهَا لِغَيْرِ وَقْتِهَا وَلَمْ يُسْبِغْ لَهَا وُضُوْءَهَا وَلَمْ يُتِمَّ لَهَا خُشُوْعَهَا وَرُكُوْعَهَا وَسُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ تَقُوْلُ ضَيَّعَكَ اللهُ كَمَا ضَيَّعْتَنِيْ حَتّٰى اِذَا كَانَتْ حَيْثُ شَاءَ اللهُ لُفَّتْ كَمَا يُلَفُّ الثَّوْبُ

انسؓ د خوږ نبیؐ نه روایت کوی. دوی وے چه څوک په خپل وخت مونځ اوکړی. او د دے دپاره ئے ښه اودس کړے وی. او ښه اولاړه او ښه په عاجزیٔ دی. او رکوع سجده کامله کوی. نو دا مونځ تک سپین جوړ شی. او وائی په دعا کښې چه خدائ د دا سے ساتنه اوکړه لکه چه زه دِ او ساتلم. او چه بے وخته په ناقص اودس بے عاجزیٔ او په ناقصه رکوع سجده مونځ اوکړی نو دا مونځ تک تور تیاره غوندے جوړ شی. او ده ته وائی خدائ

الْخُلُقُ ثُمَّ ضُرِبَ بِهَا وَجْهُهُ.

(طبرانی)

دِ داسے خراب تراب کړه لکه زه چه دِ خراب تراب کړم. بیا دا مونځ دَ زړو څیړو هسے او نغښتے شی. او دَ ده په مخ او ویشتے شی.

فائده:- تاسو اولیده. مونځ خو ښه دَ قاعدے مونځ بنده ته دعا کوی. او بد رنګه ورته خیرے کوی. بعضے خلق رکوع اوکړی او بے نیغیدو سجدے ته ځی. دَ سجدے نه هیله سر پورته او بیا سجده کوی. دا دَ کارغه ټونګے وهی. ده ته دا مونځ غوندے عبادت خیرے کوی. نو دے به ولے نه هلاکیږی. نن مسلمانان هر ځائی خوار و زار ولے دی. څوک خو دَ سره مونځ نه کوی. او څوک دغسے ټونګ مار مونځ کوی. او چغے وهی ته ګوره مسلمان ورک شه تباه شه په عاجزئ مونځ کونکی دَ پاره دَ اسمان دروازے لرے کیږی. دا مونځ ډیره بریښنا کوی. او دَ دے مانځه دَ پاره سفارش کوی. خوږ نبیؐ وائی چه څوک ښه پوره ملا تیټه برابره نه کوی. نو دَ ده مثال داسے دے. لکه چه یوه ښځه بچے په ګیډه لری. او چه دَ پیدا کیدو وخت راشی نو بچے یے مړ او غورزیږی. څوک چه په شوکیرو ناقص مونځ کوی. دے ته خوږ نبیؐ هسے شوکیره وئیلے ده عائشهؓ بی بی روایت کوی چه خوږ نبیؐ وے. چه څوک پنځه واړه مونځونه په خپل خپل وخت په پوره اودس او په ښے عاجزئ کوی. نو خدائے دَ ده سره لوظ کوی. چه دے به نه عذابیږی. او چه داسے مونځ نه کوی نو دَ ده پاره وعده نشته. که دَ خدائے خوښه شی نو معاف به یے کړی کنی په عذاب به یے کړی.

(۳) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم یَقُوْلُ اِنَّ اَوَّلَ مَا یُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مِنْ عَمَلِهٖ صَلٰوتُهٗ فَاِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ اَفْلَحَ وَاَنْجَحَ وَاِنْ فَسَدَتْ خَابَ وَخَسِرَ وَاِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِیْضَةٍ قَالَ الرَّبُّ اُنْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِیْ مِنْ تَطَوُّعٍ فَیُکَمَّلُ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِیْضَةِ ثُمَّ یَکُوْنُ سَائِرُ عَمَلِهٖ عَلٰی ذٰلِكَ (ترمذی)

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے. ما دَ خوږ نبیؐ نه اوریدلی دی. وے چه اول به دَ قیامت په ورځ په عملونو کښ دَ مانځه دَ عمل تپوس کیږی. پس که دَ دے ښه وو نو ده خلاصے بیا مونده او کټه یے اوکړه او که خراب وو. نو تباه برباد شه. او که په فرضو کښ یے کمے دی نو خدائے به او وائی چه دَ ده نفل اوګورئ چه پرے دَ دے فرضو کمے پوره کړے شی. بیا به دَ نورو

عملونو حساب د غسے وی۔ (ترمذی)

فائدہ :۔ دَ دے حدیث نه معلومه شوه۔ چه هرچاته پکار دی چه دَ نفلونو ذخیره هم لری۔ بعض خلق وائی۔ چه نفل پریږدہ که دا فرض موا وکړه نو هم ډیر دی۔ نفلونه خاص نیکان خلق کوی۔ دا صحیح ده۔ خو کامل فرض کول هم آسان کار نه دے نو نفل پکار دی۔ چه دَ فرضونو کمے پرے پوره شی۔

بل حدیث دے۔ چه اول اول مونځ فرض شوے دے او دَ ټولو نه اول به دَ مانځه پیشی کیږی۔ دَ مونځ فرض به په نفلو پوره کیږی۔ د غسے نور عبادات دی که دَ فرضونو کمے پوره شو نو بیه کنی بیا به یے دوزخ ځائی وی۔ خوږ نبی به په اول مسلمانید و دَ مونځ تعلیم ورکوو۔

(۴) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قُرْطٍ۔ دے هم د غسے په قیامت کښ اول اول دَ مانځه دَ حساب حدیث بیانوی۔ او عمر بن خطاب دَ خپل خلافت په زمانه کښ گورنرانو ته لیکلی وو۔ چه ستاسو ضروری کار دَ مونځ حفاظت دے۔ او دَ دے دَ پاره انتظام کوئ۔ نو چه څوک مونځ کوی۔ دَ دین نور کارونه به هم سنه او کړے شی۔ او چه څوک مونځ ضائع کړی۔ نو هغه به نور دین زیات برباد کړی۔

شیطان دَ مانځګڼارانه اړخ ته کرځی۔ چه سنه او باقاعده مونځ کوی۔ او چه مونځ نه کوی نو دے به زړه وردی۔ او بنده سنه گمراه کوی۔ او دا بیلمانځه په هلاکت کښ غورځوی۔

(۵) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِیْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِیْهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم اَسْوَءُ النَّاسِ سَرِقَةً یَّسْرِقُ صَلٰوتَهٗ قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَکَیْفَ یَسْرِقُ صَلٰوتَهٗ قَالَ لَا یُتِمُّ رُکُوْعَهَا وَلَا سُجُوْدَهَا۔ (ترغیب)

عبد الله بن ابی قتادہ دَ خپل پلار نه روایت کوی۔ چه خوږ نبی دے چه ډیره ناکاره غلا هغه غلا ده چه په مانځه کښ وی۔ دوی او وے اے خوږه نبی دَ مانځه غلا څه رنګ ده۔ دوی وے۔ چه پوره رکوع او سجده نه کوی۔

فائدہ :۔ غلا او غل څومره سپور او ناکاره کار دے۔ دے هر ځائی سپک سپو وی۔ او په غلا کانو کښ ډیره ناکاره غلا دَ رکوع او سجدے پوره نه کول دی۔ ابو درداؓ وے۔ یو کلار خوږ نبی اسمان ته اوکاته۔ او دوی اووے۔ چه دا خبره رابا ندے

ښکاره کړے شوه. چه علم به پورته شی. زیادؓ اووے چه دا به څه رنګ وی. مونږ
خوؔ علم درس تدریس کوو. او دا سلسله به دغسے جاری وی. خو رب نبیؐ اووے
چه دغه قدر کار خو یهود او عیسایانو هم کاوو. لوؔ دوی پکار راغے څه. علم که
وی خو په مانځه کښ که خشوع خضوع نه وی. نوؔ دے عالم دا مونځ څه مونځ دے.
او په لویه جمعه کښ به ته ګورے چه د غسے مونځ کونکے به یو نه وی. دا سے مونځ چه
پوره رکوع او سجده پکښ نه وی. دے ته هیڅ خدائے ګوری نه.

یو حدیث دے. چه یو بنده شپیته کاله مونځ ته اوکړل. او یو پکښ قبول نه
دے. ځکه چه که رکوع ئے پوره وی نو سجده ئے ناقصه وی. حضرت مجدد الفِ
ثانیؒ په یو خط کښ لیکی. چه په سجده کښ دَلاسونو ګوتے یو ځائے ساتل او په رکوع
کښ جدا کول بے فائدے حکم نه دے. دَ سجدے ځائے ته په اولاړے کښ کتل،
او په رکوع کښ په خپو نظر کول تندے او پوزه په سجده کښ لګول او په قاعده
کښ لاسونو ته کتل په مانځه کښ عاجزی پیدا کوی. او هر کله چه په دے
قدرے ادا یو کښ داخاصیت دے. نوؔ سنتو په رعایت کښ به څومره لوئے لوئے
فائدے وی.

(۷) عَنْ اُمِّ رُوْمَانَ وَالِدَةِ عَائِشَةَ قَالَتْ رَاٰنِیْ اَبُوْبَکْرِ الصِّدِّیْقُ اَتَمَیَّلُ فِیْ صَلٰوتِیْ فَزَجَرَنِیْ زَجْرَةً کِدْتُ اَنْصَرِفُ مِنْ صَلٰوتِیْ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم یَقُوْلُ اِذَا قَامَ اَحَدُکُمْ فِی الصَّلٰوةِ فَلْیُسَکِّنْ اَطْرَافَهٗ لَا یَتَمَیَّلُ تَمَیُّلَ الْیَهُوْدِ سُکُوْنَ الْاَطْرَافِ فِی الصَّلٰوةِ مِنْ تَمَامِ الصَّلٰوةِ (ترمذی)

دَ عائشےؓ بی بی مور ام رومان وے چه ما یو کَرَّاړ مونځ کوو. نو یو خوا بل خوا به کیږیدم. حضرت ابو بکرؓ چه اولیدم. نو په ئے اوزورلم. ما وے چه دَ ویرے مونځ بس کړم. او دوی اووے چه ما دَ خو رب نبیؐ نه اوریدلی دی. دوی وے چه په مانځه کښ سنه په قلاره او دریدل پکار دی. دَ یهودیانو هسے یو خوا بل خوا کیږیدل نه دی پکار. په قلاره اندامونو مونځ کول دَ مونځ پوره کولو برخه ده.

فائده:- خو رب نبیؐ به مخکښ دَ وحی دَ انتظار په وجه کله کله په مانځه کښ بره اسمان ته کاته. خو چه قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلٰوتِهِمْ خَاشِعُوْنَ نازل شه نو بیا ئے نظر ښکته ساته. اصحابو په هم یو طرفته بل طرفته کاته. په دے ئے بند کړه او

خاص دَ سجدے ځائ ته په پښے کاته. او دَ دوی په دا یقین وو. چه دوی ته خدائی گوری.
حضرت علیؓ دَ خشوع تعریف کوی. چه دا دَ زړه توجه ده. او په خوا بل خوا نه کتل هم
په دیکښ داخل دی. ابن عباسؓ چه دا دَ خدائی ته یریدونکی او په قلاره مونځ
کونکی دی. ابوبکرؓ وے. چه خوږ نبیؐ وے. چه خدائی دِ مونږ دَ منافقی دَ خشوع
نه اوساتی. او دا دَ ظاهر سکون او دَ زړه نفاق دے. دَ زړه ویره او نظر ښکته کول
خشوع ده. خوږ نبیؐ یو کس اولیده. چه په گیره یئے لاس راښکه. خوږ نبیؐ او وے.
چه که دَ ده خشوع وے. نو دَ ده ټول اندامونه به قلار وو. یو کنار خوږ نبیؐ غالباً
ته په جواب کښی او وے. چه یو خوا بل خوا کتل دَ شیطان حمله ده. یو کنار خوږ
نبیؐ او وے. په مانځه کښ بره مه گوری. نظر به مو بره پاتے شی. خوږ نبیؐ وے
چه هر مونځ داسے په قلاره کوئ. لکه چه ستاسو دا آخری مونځ دی. گویا دَ مرګ
په وجه به درته دَ بل مونځ فرصت نه وی.

(۷) عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صلعم عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تعالیٰ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ فَلَاصَلٰوةَ لَه (درمنثور)

عمران بن حصین وے چه دَ خوږ نبیؐ نه دَ اِنَّ الصَّلٰوة ترآخره تپوس او شه نو دوی او وے. چه کوم مونځ بنده دَ بے حیائی دَ کار نه منع نه کړو. نو دا هیڅ مونځ نه دے.

فائده:۔ ابوالعالیه وائی چه په مانځه کښ درے خیزونه دی. یو اخلاص دے. لو دے
دَ نیکو کار و نو حکم کوی. او دَ الله ویره دا دَ بدئ نه منع کوی. او دریم دَ الله ذکر
چه قرآن دے نو دے خو مستقل دَ ښو خبرو حکم کوی. او دَ بدئ نه منع کوی.
په دے ښے قسم مونځ خدائی ته نژدے والے نه راځی. بلکه لیرے والے راځی. دَ مونځ اطاعت
خو دَ بے حیائی او بدو خبرو نه منع کیدل دی. ابوهریرهؓ خوږ نبیؐ ته او وے چه یو
کس دے چه ټوله شپه مونځ کوی. او چه سحر شی نو بیا غلا کوی. خوږ نبیؐ او وے
چه زر ده چه دا مونځ به دے دَ غلا نه منع کړی. نو نا کاره بنده چه څه په صحیح
طریقه با قاعده دَ مونځ کول شروع کړی. نو دَ بدو به یئے خدائی خلاص کړی.
هره بدی پریخوده گران هم دی. او وخت هم غواړی. او ښه په قلاره به خپل وخت
په عاجزئ مونځ دَ ټولو بدو دَ لرے کیدو اسان علاج دے. خدائی دِ مونږ ټولو ته

د دا سے موږ ته توفیق دا کړی ۔ (آمین)

(۸) عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلعم اَفْضَلُ الصَّلٰوۃِ طُوْلُ الْقُنُوْتِ

د جابرؓ نه روایت دے ۔ د ه وے چه خوږ نبیؐ وے ۔ چه غوره مونځ هغه دے ۔ چه اوږد ه اوږد ه رکعتونه لري ۔

عَنْ مُجَاهِدٍ فِیْ قَوْلِهٖ تعٰ ، وَقُوْمُوْا لِلّٰہِ قٰانِتِیْنَ قَالَ مِنَ الْقُنُوْتِ الرُّکُوْعُ وَالْخُشُوْعُ وَطُوْلُ الرُّکُوْعِ یَعْنِیْ طُوْلُ الْقِیَامِ وَغَضُّ الْبَصَرِ وَخَفْضُ الْجَنَاحِ وَالرَّهْبَةُ لِلّٰہِ وَکَانَ الْفُقَهَاءُ مِنْ اَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صلعم اِذَا قَامَ اَحَدُهُمْ فِی الصَّلٰوۃِ یَهَابُ الرَّحْمٰنَ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی اَنْ یَّلْتَفِتَ اَوْ یُقَلِّبَ الْحَصٰی اَوْ یَشُدَّ بَصَرَهٗ وَیُعْبَثُ بِشَیْئٍ اَوْ یُحَدِّثَ نَفْسَهٗ بِشَیْئٍ مِّنْ اَمْرِ الدُّنْیَا اِلَّا نَاسِیًا حَتّٰی یَنْصَرِفَ (ترغیب)

مجاهدؒ وائي چه په قانتین کښې رکوع هم داخل ده ۔ او په عاجزئ مونځ او اوږد ه رکوع او سترګے ښکته کول (نیغ اودریدل) او د غښے د الله نه یره یکښې هم داخل دی ۔ د خوږ نبیؐ اصحاب به چه مانځه ته اودریدل ۔ نو د خدائ نه به یریدل چه یو خوا بل خوا اوګوري یا کانړے واړه وي لړ واړه وي ۔ یا بے مطلبه کار کښې اولګي ۔ یا په زړه کښې د دنیا څه خیال راولي ۔ خو که په هیره راشي نو خیر دے ۔

**فائده:** ۔ د قانتین په تفسیر کښې چپ چاپ اودریده هم دی ۔ اول په اسلام کښې خبرے او د سلام جواب جائز وو ۔ په دے آیت منع شه ۔ د عبدالله بن مسعودؓ د غښے عادت وو ۔ چه ده به سلام کوو ۔ او خوږ نبیؐ به جواب ورکوو ۔ ده ته پته نه وه ۔ ده خوږ نبیؐ ته سلام اوکړو ۔ او دوی جواب ور نه کړو ۔ د ده سره فکر شه چه دا به څما نه څه غلطي شوي وي ۔ ډیر خفه وو ۔ خوږ نبیؐ چه سلام اوګرځو نو ده ته یے اووے ۔ چه داخو د قانتین په وجه هر څه بند شو خفه کیږه مه ! خدائ خپل حکمونه زموږ د عاجزئ په وجه بدلوي ۔ اوس به په مانځه کښې صرف ذکر تسبیح او حمد وثنا وي ۔ سلام کلام به نه وي ۔ د غښے معاویهؓ د خپلے اولے مسلمانئ قصه کوي ۔ چه ماته خوږلے شوے وه ۔ چه څوک پرنجے اوکړي او الحمد لله اووائي ۔ نو ته به یَرْحَمُکَ اللّٰہُ وایے ۔ بوکس په مانځه کښې پرنجے اوکړو ما یَرْحَمُکَ اللّٰہُ اووے ۔ نو خلقو راته ږیږ ید اوکاته ماته دا نه وه معلومه چه ګنے په مانځه کښې دا خبره بند ه ده ۔ خوږ نبیؐ بیا زه یوئ کرم خو په قلاره ۔

خدائیکو خوږ نبی ډیر مهربان استاد وو.

خوږ نبی به چه د شپې مونځ کوو. نو ځان به یې په پړې اوتاړه چه په خوب کښ نه غورزیږی. نو طٰهٰ مَا اَنْزَلْنَا عَلَیْکَ الْقُرْآنَ لِتَشْقٰی نازل شه. خوږ نبی خو دومره لوئ قوړه ویلے دے. چه خپے به یې اوپرسیدے. خوموږ ته یې د داسے سخت عبادت نه منع کړیده. لکه یوے بی بی د غسے ځان په رسئ تهلے وو. نو هغې منعه کړه. خو په اوږد والی کښ د طاقت برابر ضرور خیر شته. اصحا بو عرض اوکړو. چه تا سو ته خو ټول ګناهو نه معاف دی. نو تا سو ولے دومره تکلیف کوئ. نو دوی اووے. چه زه به د دے مهربانئ شکریه نه ادا کوم؟ په مانځه کښ به د خوږ نبی د سینے نه د ساینډئ په وجه د مچئ هسے آواز را خوت. یا د کتوئ د ېشیدو هسے. حضرت علیؓ وے چه د بدر په جنګ کښ خوږ نبیﷺ مونځ کوو او ژړل یې. تر دے چه سحر شه. په ډیرو احادیثو کښ د ښرے بسترے او د خوږے بی بی نه د تهجد و د پاره پاسیده د خدائی ډیر خوښ کاره دے. او د فرښتو نه خدائی سره د علمه تپوس کوی چه دے بنده دا دومره محبوب خوب او بی بی ولے پریښوده؟ دوی وائی چه ستا د بخښے په خاطر اوستا د عذاب نه د ویرے په وجه. خدائی به اووائی. د ده امید پوره شه. او د عذاب نه په امن شه. خوږ نبیﷺ وئیلی چه د خدائی په بخنه کښ دا لوئ فضل دے. چه خدائی بنده ته د دوه رکعتو توفیق ور کړی. ملائکے څوک په سجده، څوک په رکوع او څوک ولاړے دے.

نو خدائی بنده ته مونځ ورکړو چه د دے ټولو مجموعه ده. چه د ټو ښتو په عبادت کښ شریک شی. او د قرآن تلاوت یې زیاتے ورکړو. نو د مانځه د پاره لږ خوراک او د دنیا کم شغل بکاره دے. چه مونځ ښه په حوصله اوشی.

صوفیان وائی چه په مانځه کښ دولس زره څیزونه دی. چه هغه په دولس څیزونو کښ راکیر شو. اول علم دے. چه په علم لږ عمل د جاهل د ډیر عمل نه غوره ګرځی. دویم اودس. دریم جامے، څلورم وخت. پنځم قبلے طرف ته مخ کول. شپږم نیت. اوم تکبیر تحریمه. اتم په مانځه کښ اولاړه نهم قرآن شریف لوستل. لسم رکوع یوولسم سجده. دولسم په التحیات کښ ناسته. او د دے ټولو کمال په اخلاص سره

کیږي. دَ دے دولسو درې جزونه دي. اول چه په علم فرض او سنت او پیژنے
او فرض جدا او سنت جدا کړے. دریم چه دا پیژنے چه شیطان په کوم کوم مکر په مانځه
کښې نقصان اچوي. په اودس کښې اول دا خبره ده. چه زړه دَ کینے او حسد نه پاک
کړے. لکه چه ښکاره اندامونه وینځے. بل دا چه ښکاره اندامونه دَ ګناه نه پاک ساتے
او په اودس کښې دَ اوبو کے زیاتے نه کوے. او جامے په حلالو پیسو اغستے شوي وي. او
پاکے وي. دَ سنت برابر وي. چه دَ ګیټو نه ښکته پرتوګ نه وي. او په دے کښې تکبر
نه کوے. په وخت کښې وخت پیژندل پکار دي. دَ بانګ خیال ساتے او چه دَ مانځه وخت
درانه تیر نه شي. قبلے ته خپل ټول بدن مخامخ کول دَ الله طرف ته په زړه کښې توجه
ټول تال خدائ ته توجه کول په وخت کښې دَ وخت دَ مونځ نیت. بل چه الله م وئي
او خدائ م دَ زړه نه هم خبر دے. په تحریمه کښې صحیح لفظ وئیل. لاس پورته کول
چه الله اکبر وائي. نو چه دَ خدائ لوئي ئے په زړه کښې هم وي. په اودریدے
کښې دَ سجدے ځائ ته کتل. دَ خدائ په مخکښې دَ اودریدو خیال. چه بل خوا دَ سر نه
ګوري. چه بل خوا ګوري نو دے داسے شه. لکه په منتونو بادشاه ته اودریږي.
او دے تر یو خوا بل خوا ګوري. نو ده ته به پاچا کله اوګوري. قرآن به په صحیح
لفظونو وائي. معنی ته به ئے خیال کوي. او چه څه لولي په دے به عمل کوي.
په رکوع کښې سر ملا او ټوله شا برابر ول. پیرا لستے کوتے په زنګنونو کیخودے. تسبیحات
دَ پوره په قدر او عزت وئیل. په سجده کښې لاس دَ غوږونو برابر کیخودے. څنګلے اوچتے
ساتل. او تسبیحات په عزت او قدر وئیل. په ناسته کښې ښۍ پښه اولاړه او کینه
پرته ساتل. په پوره پوره تشهد وئیل. په دیکښې په خوږ نبی سلام دے. مومنانو
ته دعا ده. او په سلام کښې دَ فرښتو او ښي کینه دَ خلقو نیت کول. په اخلاص کښې
خالص دَ الله رضا مد نظر ساتل. او دا یقین کول. چه دا مونځ دَ الله په توفیق
اوشه. او دَ دے مونځ دَ ثواب امید لرل.

مونځ خو کیږیاده. چه سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ کښې دا وائي. چه ستا نوم ډیر برکتي
دے. چه په هر څه واغستے شي نو هغه برکتي شي. وَتَعَالیٰ جَدُّکَ ته دَ ډیرے
لوئے لوئي خاوند ئے. وَلَا اِلٰهَ غَیْرُکَ ستا نه سوا بل معبود نشته. په رکوع کښې دَ

عملاً خپله عاجزي او دَ خدائ لويئ ښکاره کړي. ځما ګناهګار وجود د حاضر دے او تېټ دے. دغسے په سجده کښ دَ دېنه هم زيات عاجزي ښودلے شي. سر چه ډير شريف اندام دے. په خاورے کېخود ے شي. او په سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ او سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى کښ دَ ده لويئ خود ے شي. ګويا دا ما ځکه او دَ خدائ نه فضلو نه غواړي او ل اول يې په ادب لاس ايښي وو. سر يې ورته ټيټ کړو. په زمکه يې کېخود ه. پوزه يې په خاوره وکړه کړه. دغه مونځ دَ دين او دَ دنيا دَ فائدے عمل دے. خدائ دِ مونږ. ته صحيح مونځ نصيب کړي. (آمين)

حضرت حسن رض به چه په اودس شروع اوکړه. نو رنګ به يې زير شه. ده به وے نو په ره به. دَ ډير جبّار خدائ په مخکښ دَ اودريد و وخت راغے. او چه دَ جمات دروازے ته به راغے. نو ده به وے اے خدايه! ستا بنده ستا په دروازه باندے حاضر دے. اے احسان کونکيه! او ما سره ښه کونکيه! بد عمله ستا په مخکښ حاضر دے. تا مونږ. ته حکم کړيدے. چه ښه خلق دِ دَ بدانو نه معاف کوي. نو ته ښه کونکے يې. او زه بدکار يم. اے کريمه خدايه! ځما دَ بدو نه دَ خپلو ښه والو په برکت معاف اوکړے.

حضرت زين العابدين رض به زر رکعته مونځ کوو. تهجد يې په سفر او کلي کښ نه پريښود ه. او په مانځه کښ به ريږ يده ګرېديده. بيوه وسړي دَ ده په کوره اوراو لګيده. دے په مانځه وو. چاوے او ر دِ مړ نه کړو. او مونځ دِ کاوُو. ده وے دَ آخرت اور دَ دنيا دَ اور نه غافله کړم. ده به وے تعجب دے. دَ متي نه پيدا تکبر کوي سره صبا به مردار شي او تکبر کوي. او ته ګوره دَ فنا کيدو نکے دنيا فکر کوي. او دَ باقي آخرت نکر نه کوي. دَ شپے به يې پټ خېرات کوُو. چه مړ شه نو معلومه شوه چه سل کوروته دَ ده په امداد آباد وو.

حضرت علي رض به هم دَ مانځه په وخت کښ ريږ يده. او ده به وے ته ګوره زه اوس هغه عبادت کوم. چه زمکه آسمان ترے عاجزه وو. بيا چه زه به داخه رنګ ادا کړم. عبد الله بن عباس رض به په بانګ اورېدو شروع کړه چه ژړا ده به يې لوند شه. سترګے به يې سرے شوے. چا به وے مونږ خو په دے پروانه لرو. ده به وے دَ بانګ بيوه

کلمه دَ جلال نه پکه ده ۔
په ذوالنون مصریؒ پسے یو کس مونځ کوو ۔ نو چه ده الله اووے ۔ نو تا به وے مړ شه ۔ او چه اکبر یې اووے ۔ نو ده وے زړه ہم دَ ویرے نه ټکړے ټکړے شه ۔ حضرت اویسؒ قرنی به یو اځے په سجده او رکوع کښې ټوله شپه تیره کړه ۔ حاتم زاهد بلخی به وے چه زه سبه اودس اوکړم ۔ نو بیا دَ مانځه مقام ته لاړ شم ۔ اودا سے اودریږم چه کعبه مخا په مخکښې هوبهو وی ۔ او خپے ہم په پُل صراط وی ۔ ښی طرف ته ہم جنت اوګینړم طرف ته دوزخ وینم ۔ دَ مرګ فرښته ہم په سر اولاړه ده ۔ او زه وایم چه دا مخا آخری مونځ دے ۔ په دے حضور کښې الله اکبر اووایم ۔ بیا په پو په پو به قرآن وایم په عاجزئ رکوع او سجده کوم ۔ دغسے مونځ پوره کړم ۔ او امید لرم چه خدائ به یې قبول کړی ۔ او دَ خپلو بد عملو په وجه یریږم ۔ چه هسے نه رابیرته یې کړی چا وے دَ څومره موده نه دا سے مونځ کوے ؟ ده وے دیرش کاله اوشو ۔ سوالګوی ورته اووے چه مخا خو یو مونځ هم دا سے نه دے نصیب شوے ۔ یو ګند اردَ حاتم نه دَ جمع مونځ پاتے شه ۔ نو یو تن دوؤ پرے خفګان ښکاره کړو ۔ ده وے عجیبه که مخا ځوئ مړ وے ۔ نو نیم بلخ به ہم همدردئ ته راغلے وو ۔ او دَ مونځ خفګان راته دوو تنو تدرے ښکاره کړو ۔ ده وے خبره داده چه خلقو ته دَ دین مصیبت دَ دنیا دَ مصیبت نه کم ښکاری ۔
سعید بن مسیب به شل کاله دَ بانګ نه مخکښې جمات ته تلو ۔ محمد واسع وے چه مخا خو یو دا سے دوست پکار دے چه ما ته مخا غلطی ښکاره کوی ۔ او یل دَ ضرورت قدرے روزی ، بل دا سے دَ جمع مونځ چه سره دَ کوتاهی قبول شی ۔ ابو عبیده وے چه په مانځه کښې راته شیطان اووے چه ته ښه وے ۔ ځکه امام شوے ۔ زه به هیڅ کله مخکښې مونځ نه کوم ۔ دَ میمون بن مهران نه یو ګند ار جمع اوشوه ۔ ده اووے چه دَ جمع قدر مخا سخه دَ عراق دَ باچائی نه ډیر دے ۔ دا دا سے خلق وو ۔ چه اول تکبیر به ترے لاړه ۔ نو اووه ورځے به دَ دوی سره څخو دګی کیده ۔ خو بنئ به دَ خلقو سره بیے خبرے کولے ۔ خو چه دَ مانځه حالت یه شه ۔ نو تا به وے چه دلته هیڅوک نشته ۔ فنا به شه ۔ دوی به وے ۔ دا خو دَ خپل خدائ سره مخامخ رازو نیاز دے ۔

دَ لې چانګو کښې نه ځائيږي. په سعيد تنوي به پجان ګرځېده. او دا به ورته غږ
نه کوو. چا ورته اووے چه ته دې ولې نه شړے. ده وے په يو کار چه بېتونه
لږي. نو دوی غږ نه کوي. چه زه هم وخو کېږم نه ځان بهادر مشهوروی
او زه به دَ يو ځي چيچل نه پوره نه کوم. دَ يو صحابي نه غل دَ شپے آس پرانسته او ده
مونځ کوو. ده اوليده. خو غږ يې ورته اونه کړو. چا وے تا نيوو نه؟ ده وے
دَ آس نه په قيمتي کار کښې اخته ووم. دَ حضرت علیؓ نه به غشے په مانځه کښې
او ښکے شه. په رون کښې يې غشے ځي شوے وو. چه په مانځه اودرېده. نو خلق
راغے او دے يې اوخکه. چه دے دَ مانځه نه فارغ شه. نو ده وے فلځمانه
غشے اوباسئ څه؟ دوی وے هغه مونږ اوخکه. ده وے بېنه زه پرے پوئ نه
شوم. عامر بن عبد الله به چه مونځ کوو. نو دَ خلقو خبرے خو پرېږ. ده چه دَ
ډهولکی آواز به يې هم نه اوريده. ده نه چا تپوس اوکړو چه ته مونځ کوے. نو
دَ څه نه خبرېږے؟ وے او څه دے نه خبرېږم چه د غسے به زه خدائ ته اودرېږم
او يا به جنت ته اکوی او يا دوزخ؛ دوی وے نه زمونږه خبرے اورے؟ ده وے په ما کښې
دِ نيزے ننخي شي. چه مونځ کوم او ستاسو خبرے اورم. ده به وے که زه آخرت
[illegible] اووينم. نو زما دَ غيبو په يقين او دَ ليدو په يقين کښې به فرق اونه شي. په
بهجة النفوس کښې ليکي. چه يو کس دَ يو بزرګ په خدمت کښې ماسخين راغے. ده
چه فرض اوکړه. نو په نفلو يې شروع اوکړه. تر دے چه ماښکر شه او ځماکر
مونځ يې اوکړو نو په ذکر اولګيده تر ماښامه. ماسخوتن بيا د غسے تر سحره. بيا يې
ذکر شروع کړو. مونځ يې اوکړو او وظيفه يې شروع کړه. په دے کښې يې په ناستے
سترګے پټے شوے. دے چه ويخ شه. نو ده اووے. چه زه دَ خدائ په امداد دا سے
سترګو نه پناه غواړم. چه په خوب نه مړېږي. بعض نيکانو به خوب کول غوښته
خو دَ دوزخ دَ ويرے په خوب نه ورتلو. نو په مانځه به اولګيده. دا قسم واقعات بيشماره
دی. خو مونږ نن ورځے دَ واقعاتو دَ منلو نه هم لرے ډنے يو. خو دا قسم واقعات دومره
يقيني دی. که مونږ په دے يقين اونکړو. نو دَ سره به هم وتيره خبره نه منو.
رونړو! دَ سينما، تهيټر او دَ [illegible] يدو په کتو که مونږ په کهنټو کهنټو اولاړ

تماشے کول او شو کیږي بیدلي وي۔ او په دے نه ستړے کیږو۔ سره ددے چه بدکاري
دي۔ نو خوږ عبادت او د خدائ په رازونیاز خوب نه دے آتله او اوږدے سجدے
او رکوع کانے ولے د عقل خلاف گنړو۔ موږ ددے نه نابلد یو۔ په دے خوند
نه پوهیږو۔ ریشتیا دادا چه نابالغ ډروکے د بالغ د کار په خوند ونو کله پوهیږي
که خدائ مو دا خوند نصیب کړي نو څه به ښه وي۔ وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيزٍ

## آخری عرض

صوفیان وائي چه موږ خو د خدائ سره جرگه ملکه ده۔ نو دا په غفلت کله
کیدے شي۔ نور عبادتونه په غفلت کیدے شي۔ ولے موږ خو د قرآن په لوستو
او ذکر کیږي نو په دے کښې غفلت نه شي کیدے۔ که په غفلت موږ کوو۔ نو
د تبے په حالت کښې کاوا کے خبرے به شي۔ دے څه وائي خو پوهیږي نه۔ عادتي
موږ کله اد د غسے خپل عادتي کلام کوي۔ که غافله وي نو هم خو به فائده
نقصان نه پوهیږي۔ بلکه اوده چه څه خبره کوي۔ خو ورځ پورے نه پوهیږي
او نه ترے اوده خبر وي۔ د غسے د غفلت موږ ته خدائ ډیر و توجه نه کوي۔ نو
پکار دي چه په پوره توجه او پوپه موږ اوشي۔ دا د شیطان دهوکه ده۔ چه
سر په حاضري او شوه۔ که ښه نه وي نو نه به دي خدائ د موږ ته د ښه
موږ ته توفیق راکړي۔ آمین۔

وَمَا تَوْفِيقِيْ إِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ۔ رَبَّنَا ظَلَمْنَا
أَنْفُسَنَا وَإِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخَاسِرِيْنَ
وَصَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّآلِهٖ
أَجْمَعِيْنَ۔ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

د پښتو ترجمه :- حبیب الرحمان

# د دار التصنیف روستم تصنیفات

| | | | روپۍ |
|---|---|---|---|
| (۱) | مکمّل تفسیر حبیبي پنځه شپږ زره مخه | پښتو | ۶۰ —— ۰ |
| (۲) | تشریح بخاری دولس پارے | پښتو | ۳۰ —— ۰ |
| (۳) | تحفه حج | پښتو | ۱ —— ۲۵ |

د تفسیر یوه یوه پاره په دوه روپۍ — ۱و
د تشریح بخاری یوه یوه پاره په دوه نیمے روپۍ ملاویږی۔

(د ملاویدو پته)

## شیخ التفسیر حضرت مولانا حبیب الرحمان صاحب

## روستم ۔ مردان

۲۲ ب